# کندهار

اطلاعات او کلتور

د۱۳۵٦ کال

دتلی میاشت

۷ گڼه


## په دی گڼه کی

دحکیم سنایی غزنوی د زیږیدو په

منا سبت دجمهور رئیس ښا غلی

محمد داؤد پیغام

داطلاعاتو اوکلتور دوزیر

پوهاند دکتور نوین وینا دافغانستان

دستر حکیم اوعارف اونومیالی شاعر

سنایی غزنوی دزیږیدو دغونـــډی د

پرانستلو په وخت کی.

دتاریخ په اوږدو کی دافغانستان د

آزادی غوښتونکی خلکو مبارزو ته

یوه لنډه کتنه .

کندهاری خطاطان

لمر یاد انرژی لویه منبع

په لرغونی مصر کی چی به یی دنیل رود

ته یوه ښکلی نجلی ور اچول.

تکره ربابی بلبل شاه



دپښتنی گینی یوه ښکلی نمونه

(دحگدیش عکاسی)

دحکیم سنا یی دزیږیدو په مناسبت

# دجمهور رئیس ښاغلی محمدداود پیغام



اعلیحضرت محمد نادر شاه شهید دګوزنی بحران څخه دهیواد ناجی

خوشحاله یم چې د غزنی دستر عارف او شاعر حکیم ابو المجد مجدود بن آدم سنایی دزیږیدو دنهه سومی کالیزی په مناسبت خاصه مهی غونډه دهغه دټومیالی پهوطن کی نمانځله کیږی.

سنا یی له هغو سترونوا بغوڅخه دی چه دهغه په آثارو کی لهحقیقت اوانسان دوستی او هغه معنویت سره مینه ځرګنده ده چې د انسان د نیکمرغی ضامن دی، داسی تومیالی چې دنیا یی دبدبه او درندښت یی ترشا غورځولی او انسانی ډیر لوړ مقام ته یی د رسیدو پهلاره کی لههر هڅه څخه تیر شو چې غولوونکی او ددی دنیا متاع دهغه په سترګو کی کوم ارزښت نه درلود.

حکیم سنایی یوازی دیرون ورځی تومیالی نهٶ، دنن ورځی تومیالی هم دی اود سبا ورځی تومیالی به هموی.

په یوه داسی نړی کی چې دټولنیز ژوندانه پیچلی مسالی د ټکنالوژی له چټکی ودی سره یو ځای انسانی ټولنی له داسی بوختیاو او پیچومو سره چې پیژندل شوی ندی، مخامخ کوی نو کیدی شی چې د سنایی افکاراو فکرونه بی ګومانه لهبل هر وخت څخه زیات د بشری سبا دخلاصون وسیله وی.

دغزنی ستر حکیم دهغه دارهطبیب پهشان چې دخپلو رنځورانو د رنځ درمل ډیر ښه پوهیږی، دسړی دسما پهدرمل لاس پوری کوی اود ستر ښوونکی په نامه دسړی لاس نیسی اوهغه ته دسم ژوندانه لاری چارې ورښیی اود وژل کیدو اوبی لاریتوب لهکندی څخه یی بچوی.

حکیم سنایی د ګوتو په شمیر دهغو تومیالو څخه دی چې په خپل تفکرات بیان سره یی په دری ژبه کی نسوی ښوونځی جوړ کړ اود خپلو پیروانو پهوړاندی یی نوی لاره اړاره کړه او دبنیادم سایی پاکه کړه چې نهیوازی پهخپلو وطنوالو باندی ستر حق لری، بلکه انسانی ټولنه هم دهغه تفکر اوفکر ته اړه او پوره وړی ده.

هیله لرم هغه پروهان چې د حکیم غزنوی د نمانځنی په غونډه کی برخه اخیستی، ددغه تومیالی پسه دبیډو نکو آثارو، خلاندو افکارو او احوال باندی د څیړنی پهکار کښی بریالی شی.

(ب)



سنا یی غز نوی دکالیزی ... نکسی)



کله چې دجمهور رئیس ښا غلی محمد داود پیغام داطلا عا تو اوکلتور دوزیر پو هاند د دنمانځاو دغو نډی دپرا نستلو پسه مناسبت لوستل کیږی.

# کندهار

جمهوری دو لت دافغا نستان دخلکو تر منځ د یوه ریښتیا نی مادی اومعنوی یووا لی دپیدا کیدو دپاره دبرابر تیا، ورور ګلوی اودوستی پهاساس زیار باسی اوپه دی لټه کی دی چی دهر ډول توپیر ریښی له بیخه وباسی

(جمهور رئیس ښا غلی محمدداود)

تا سیس کال ۱۳۳۹ــ پرله پسی ګڼه (۲۱۱)





## دنجات ورځ

دتلی درویشتم چی هر کال دنجات دورځی په نامه په ټول هیواد کښی پهخوښی سره نمانځل کیږی په حقیقت کی دهغی بختوری خاطری یادو نه دهچی په همدی ورځ زموږ ګران هیواد د یوی شومی دوری له تورتمه نجات وموند .

ترهغه وروسته چی افغا نستان د مرحوم اعلیحضرت امان الله خان په نیکه اراده ،اود مرحوم غــــازی اعلیحضرت محمد نادر شاه اونورو وطن پرستو مجاهدینو په فدا کاری داستعمار له منګولو څخه خپــــل سیاسی استقلال بیرته تر لاسه کړ، دوخت د منور زعامت په حکیمانـــه تدبیر د ټولنی د اجتماعی او اقتصادی رشد په غرض یولړ بنیادی اصلاحات پیل شوه. خو استعمار ګران بیاهــم آرام پاته نشول اود خپلو منحطـــو استعماری دسیسو په عملی کولـــو سرهیی هغه ملی نهضت په نطفه کــی شنډ کړ.

استعمار ګران دی حقیقت پــه درك سره چی مستقیما ددغه توریالی ټبر استثمار محال ښکاری نوځکهیی دخپلو اجنټانو په ټونګښد ځینـــو فاسدو او مغرضو عناصرو لمسون ته ملاوتړله او پدی توګهیی هغه مترقی نهضت ریښی وسوزولی کوم چی هیواددبنیادی انکشاف په غرض طرح شوی ؤ. ددغی شومی دسیسی په نتیجهکی یو وار بیایوه توره دوره پر ټول هیواد مستولی شوه .

دغه شومه دوره که څه هم عمریی لنډ ؤ خو تلفات یی تر اوسه د تاریخ دزړه تور داغ بلل کیږی. پدی ننګینه دوره کی د علم او فرهنګ دروازی وتړل شوی ،منور شخصیتو نه یاد ملکه فرار او یایی سرونه د خـاورو شومه شوه . لنډه داچی د هیوادټوله مادی او معنوی پانګه چورو چپاؤاو اضمحلال شوه.

مګر د ښه مرغه دغه بحرانی حالت ډیر پایښت ونکړ، افغانی زلمیچی تل پداسی خطیرو حالاتو کی دهیواد دژغورنی او خلاصون دپاره دهمـــت ملاوی تړلی دی ،یوځل بیا پدغـــه ناوړه حالت کی د خپلی خاوری دحق پرځای کیدو دپاره دهمت لیچـــی راونغښتی اود خپلوی مجاهدغازی اعلیحضرت محمد نادر شاه پــــه مدبرانه مشرتابه یی هیواد ددغـــی توری دوری څخه وژغوری. همـــدا وجه ده چی هر کال دنجات دورځـــی لمانځنه په درنښت پر ځای کیږی.

موږ پداسی حال کی چـــی ددی ورځی په نمانځنه سره د خوښـــی څر ګندونه کوولدی امله د نجات دلاری دمجاهدینو ارواحو ته درود وایو اود لویه خدایه څخه دجمهوری نظام په رڼاکی دیوه پرمختللی هوسا اوبسیا افغا نستا ن دجوړ یدو غو ښتنه کوو.



داطلا عاتو او کلتور وزیر پوهاند ډاکتر نوین د حکیم سنایی د نمانځلو دغونډی د پرانستلو پهوخت کـــی وویل.

# دسنأیی فکر او له انسان سره

## د هغه مینه هیڅکله د زړ ښت ژ نګ نه نیسی

محترمو پوهانو، درندو میلمنو، میرمنو ،ښاغلو !

داطلاعاتو او کلتور وزارت ویاړی چی د افغا نستان د ستر حکیم اوعارف اونومیالی شاعر ابو المجد مجدودبن آدم سنایی د زیږیدنی د نهه سومـــی کالیزی لهامله دکور نیو او میلمنو پوهانو په ګډون د خاصی علمـــی غونډی په جوړیدو سره دهغه ستر میړه لوړ مقام لمانځی .

حکیم سنایی غزنوی د دی خاوری د ګوتو په شمیر هغو نومیالو څخـــه دی چی دهغهدفکر پراخوالی داندیښنی ژوروالی دنظر، غور، غورهرایی اولوړ همت دی دبشریت له ښوونکو څخه ګرځولی دی .

دسنایی فکر او لهانسان سره دهغه مینه هیڅکله دزړښت ژنګ نه نیســی

نن چی ددغه نومیالی حکیم لـــه زیږیدو څخه نهه سوه کاله تیریږی دخاوری نه جوړ شوی انسان له بـــل هروخت نه زیات دی تهاړدی چی په راز باندی ددغه پوه روح بخښونکی پیغام ته غوږ کیږ دی.

حکیم سنایی هغه لومړی څوك ؤ چه عرفانی مباحث یی د دری شعر دیوی ستری مجموعی په قالب کی واچول اولدغی لاری څخه یی له خپل ځـــان څخه په وروسته شاعر انو بانـــدی ژوره اغیزه پریښوده ، دسنایی آثارو هغه برخه چی دده د روحی تکامـــل ددوری ثمره او عارفانه مواعـــظاو حکماو حقایق پکی شته په حقیقـــت کیپه ادب کی دیوه نوی سبكسر یزه ده چی له سنایی وروسته یی پهپیړیو پیړیو دوام درلود. او د شعر او ادب او عرفان یو شمیر ډیر ستر کسانو پهځان پسی راکښل د غزنی دحکیم همت او قناعت اود علم او پوهـــی مراتبو او معنوی فضایلو او پـــه عرفانی پیچلو مسالو کی دهغهغوراو دهغه استادانه اشعارو دده د کلـــك فکر پهمر سته ده ته پا یښتورکړ دسنایی دفکر پراخوا لیپو لـــهاو سرحد نلری هغه نومیالی چی دتامل اوتفکر په ټینګار سره یی له عقولـــو اونفسونو څخه پرده پورته کولـــه ټولنه او خلك یی همدنظر څخهلری نهساتل.

دی د ځینو آثارو په ترڅ کښیپه زیاتی همدردی او خواخوږی سرهاړاو بیوزله کسان یادوی واکداران عدل اوانصاف ته رابولی او ددنیاد دبدبی اوارباب خاوندانو ته دښو کارونواو دوستی درسورکوی او افراطاوتفریط نهغندی .

دحکیم غزنه دحال بدلوناو زهداو پارسایی او صبر نه مخ اړول پـــه حقیقت کی ددی ښکارندوی دی چی بنیادم د ژوندانه په هرپړاو کیکولی شی انسانی اخلاقی مکارم او ستر فضایل تر لاسه کړی.

دده په اعتقاد بنیادم باید لهخپـل ځان سره مبارزهوکړی کله چیانسان پهخپل ځان بریالی شو نو دهغهپرمخ دلوړو اخلاقو دروازی پرانستـــــل کیږی اود ریښتیانی انسا نی عظمت پهلاره روانیږی .

په پایکی هغو درندو پوهانوتهد ښه راغلاست په ویلو سره چیلـــه دوستو هیوادو څخه د حکیم سنایـــی غزنوی په علمی غونډه کی د برخـــی اخستو دپاره افغا نستان ته راغلی امید لرم دغه علمی غونډه وکولیشی دغزنی د نومیالی حکیم د آثاروان افکارو پهباره کی د څیړنی اوخبرو اترو پهکار کی بریالی شی .

ومن الله التوفیق

(ب)

# د تاریخ یوه پاڼه

دفیض محمد «نومیر» لیکنه

څلرمه برخه

## د تاریخ په اوږدو کې د افغانستان د آزادۍ غوښتونکو

### خلکو مبارزو ته یوه کتنه

کله چې په ۱۹۰۱ میلادي کال کې امیر عبد الرحمن خان وفات سو ورځای یې زوی امیر حبیب الله خان

دپلار پر تخت کښیناست امیر حبیب الله خان دخپل حکومت په لومړي وخت کې نوي فرهنګ ته

زیاته توجه اوپام ونه کړه او په یوه اړخه خلکي اصلاحات یې لاس پوري کړه په دوره کې یعني په ۱۹۰۳ میلادي کال دحبیبیې ښوونځي په

۱۹۰۹ میلادي کال حربي ښوونځي په ۱۹۱۰ میلادي کال کې یې په کابل کې یو رو غتون جوړ کړي او هم یې د ۱۹۰۹ میلادي کال څخه تر ۱۹۱۰ کال پوري دجبل السراج او کابل.

کابل او ننګرهار تر ما بین دټیلفون مزي وغزول په ۱۹۰۷ میلادي کال

یې دجبل السراج داوبو دبرق ماشین په کار واچوی اود هغه اوبو څخه

بې برق دلومړي ځل له پاره تولید کې همدغه رنګه دامیر حبیب الله خان

دپاچهۍ په وخت کې په کابل کې یو شمیر روشنفکر وځوانانو دافغانستان دسیاسي آزادۍ اود انګریزانو د

استعمار پر ضد اود هیواد داپادي په خاطر په مبارزو لاس پوري کړ امیر حبیب الله خان

دخپل حکومت په دوره کې د کابل جلال آباد او کندهار دلو یو لارو

سړ کونه جوړ کړل اودمسافرانو دهوسا ینې اوآرامتیا له پاره یې په هرو شپږو ربا طو بانډې کاروان سرا یو نه ودان کړل دده دحکومت

پېدوره کې یو اخبار دسراج الاخبار په نامه هم راووتی لنډه دا چې په ۱۹۱۹ میلادي کال دفروري دمیاشتې

پر ۲۱ نیټه چې ۱۳۳۷ قمري کال د جمادي الاول دمیاشتې داتلسمې

نیټې سره برابره ده نوموړي امیر په شهادت ورسیدی او پر ځای

یې امیر امان الله خان په ۱۹۱۹ میلادي کال کې چې د۱۲۹۷ شمسي کال د

کب دمیاشتې دریمه نیټه وه دملت په اراده دافغانستان پر پاچهۍ

وټاکل سو کوم وخت چې امیر امان الله خان دپلار چهې پر تخت

کښیناستی په دغه ورځو کې دهندوستان سیاسي اوضاع ډیره مشوشه وه د نړۍ دلو مړۍ عمومي جګړې دپای ته

رسیدو وروسته دهند وګړو د هغو خدمتو نو په مقابل کې چې دبرتانیې

دحکومت سره یې کړي وه د خپل هیواد دسیاسي آزادۍ غوښتنه کول

مګر د برتانیې حکومت د هغو دی ارزو ته کومه پاملرنه نه کوله او هم

یې دهند زیات شمیر مشران بندیان کړل دهند ددی سیاسي پریشانې اوناقرارۍ څخه دافغانستان حکومت پوره خبرو.

څرنګه چې امیر امان الله خان د یوه روښانه طبیعت څښتن او دځوان زړه څښتن وو د۱۲۹۷ شمسي کال دحوت په نهمه ورځ ۱۳۳۷ قمري کال د جمادي الاول دمیاشتې پر۲۶ نیټه اود ۱۹۱۹ میلادي کال دفبروري دمیاشتې پر ۲۷ نیټه یې دافغانستان په پایتخت کابل کې دافغان ملت د آزادۍ اعلان وکړ اود حوت دمیاشتې پر دیر لسمه نیټه یې د

هندوستان انګریزي وایسرا (لارډ چلمسفورډ) داډول پیشنهاد و لیکې «کومه معاهده چې په ۱۹۰۵ کال

دافغانستان اوانګریزانو تر منځ سوې ده باید بیاوکتل سي اویوه

داسې معاهده تر تیب سي چې د دواړو خواوو برابر مساوي حقونه پکښې خوندي وي.

دنوموړي پیشنهاد جواب د حمل دمیاشتې پر شپږ ویشتمه درجب د میاشتې پر څوار لسمه اود اپریل دمیاشتې پر پنځلسمه نیټه د هندوستان دانګریزي وایسرا له خوا فقط دتجار تي معاهدې دتجدید لیکلې موافقه را غله تر دې لیك وروسته دافغانستان حکومت پوه سو چې انګریزان دافغانستان په سیاسي خپلواکۍ قایل نه دي ځکه یې نو سمدستي مشرقي سر حدو نو ته د حربي تجهیزاتو او لښکرو په استو لولاس پوري کړ که څه هم په دغو ورځو کې دبرتانیې حکومت دجرمنې غوندې غښتلي دښمن مغلوب کړی وو دانګریزانو دفوځي طاقت سره د افغانستان دننګیالیو او زړه ورو خلکو جګړې داسې مثال دي لو دی لکه څوك چې دغره سره جنګیږي مګر بیا هم افغانانو دنړۍ لوی استعماري قوت ته د خپلې خاورې دآزادۍ له پاره دجګړې اعلان وکړ اود خپلې مقدسې خاورې دآزادۍ په لاره کې تر خپلو سرو مالو اواولادو څخه تیر سول دافغان دولت له خوا سپهسالار صالح محمد خان دننګرهار محاذته سپهسالار محمد نادر خان دپکتیا محاذ ته او عبد القدوس خان (اعتماد

الدوله) دکندهار محاذ وټاکل سول په کابل کې دانګریزانو سره دجګړې نقشه داسې طرحه سوې وه چې دخیبر پکتیا او کندهار دمحاذو قوماندانان به په یوه سلا په معین او ټاکلي وخت پر غلیم بریدکوي.

دخیبر دمحاذ قوماندان سپهسالار صالح محمد خان څرنګه چې خیبر ته ورسیدی د ثور په دو ولسمه دشعبان پر دوهمه اود مې دمیاشتې پر دریمه نیټه یې دمو کز بې موافقې او بې کومې امریې پر انګریزي قواو برید وکړ افغانی لښکري مخ ته ولاړې اودغلیم څخه یې دلنډې کوتل په جنوب کې کافر کوټ ونیوی دوی ورځې وروسته دمې دمیاشتې پر پنځمه دانګریزانو نوره قوه لنډی کوتل ته راورسیده ددښمن الو تکو پر افغانی غازیانو باندې بمونه اچول مګر بیا هم دجګړې په تود ډګر کې دپښتنو لښکرې په ډیره مړانه اود لاورۍ سره جنګیدلې اود خپلې خاورې د آزادۍ په خاطر هرقسم قربانۍ ته اماده وه سره بیره پر هغه چې دغلیم دلښکرو تلفات زیات وه او جګړه دافغانانو په ګټه وه په دې وخت کې سپهسالار صالح محمد خان د ګټلې جګړې دمیدان څخه شاته یعنې دجلال آباد خوا ته ولاړی انګریزي لښکرې دثور په ۲۳ نیټه ډکې ته راورسیدې په دې وخت کې دننګرهار لغمان او کنړ دسیمو ملي مجاهدینو ددښمن په مقابل کې دملي جهاد نغ وکړ اود فرنګیانو سره یې په سخته جګړه لاس پوري کړ دپښتنو

انګریزانو جنګ په دو نې اندازه شدید سو چې په اخیر کې د لاس اوښتو نې جګړه شروع سوه افغانانو

نور په مقابل مخکې

دتوری تبر، سو تې پیش قبضی او برچی په زور دغلیم مقا بله کو له کله چی انگر یزا نو دپښتنو دغه سختې حملی او مقا ومت ولیدی شا ته‌ولاړه په دغه ورځ دپکتیا په محاذ کـــی سپهسالار محمد نادر خان او ملـــی مجا هد ینو دانگر یزا نو سره جنگك شروع کی(۱)

«سپهسا لار محمد نادر خان‌اوملی مجا هدینو دانگر یزا نو څخه‌پنځوس چو نې تر لاسه کړی چی نومو نه‌یی دادی.

کمر دین ، سره خـا، سره دره، گوسټ څخو بی، دحسین بابازیارت گلکځ، شین با ژی ، میراری خیل مغل کو ټ، احمدی در گه، برج‌شار داکوزی، سلیزی، ما نې خوا، ټا نې مغل کو ټ ،سره چو نې گر ده، نکه بابړی چو نې کلای سیف الله خان تحصیل ژوب توی گجیره ، نیلی سپینکی کڅ، خو ږمه، مر تضی‌کوټ بزارگی، جتهې کو ټ، ډیره وړه کتایی مانجی گړه، مانجی، سرو کی‌چنډولی دنگه، منځی، سپین وام ،راز ملك، تور آشنا، نو تا خیل، کجیری اود ټل مشهوره عسکری چو نې فتحه کړه

په هغه شپه چی سپهسا لار محمد نادر خان او ملی مجا هدین پر ټـــل با ندی دبر ید په حال کی وه‌انگر یزا نو خپلو لښکرو ته له چمن څخـــه پرسپین بو لد ك با ندی دبر یدامر ورکی سهار چی سپیدی چاو دلی‌د انگر یزانو دیر ش زره لښکردسپین بولدك تر سر حدی کلا چی په قلعه جدید شهرت لری چا پیری سوی‌د فرنگیانو هغه قوی‌چی‌دجنرا ل‌هارډی په‌مشر توب دجوزا په شپږ مه‌سهار وختی پر سپین بو لدك بر ید وکـــړ دغه وخت په کند هار کی‌یو غنډپلی دوه‌کنډکه سپا ره اود څه توپخا نې سره‌د جر نیل غلام نبی خان نا صر ترادارې لا ندی په کند هار کې‌پراته وه‌مگر دسپین بو لدك په سر حدی کلا کی دری سوه تنه سپا هیان‌د خیلو زړو وسلو سره دکند کمشر داؤد شاه خان او ټو لیمشر محمد یوسف خان تر مشرۍ لاندی پراته

وه کوم وخت چی دغلیم عسکرو پر سپین بو لد ك با ندی یر غل وکی دکند هار دښار قو ماندان جنرا ل غلام نبی خان دانگر یزا نو سره‌د جگړی په نیت تیا ری ونیوی اود فرنگیانو پر ضد یی امر صا درکی مگر دبده مر غه دده مر سته په‌ټاکلی وخت ورونه رسیده.

دجوزاپه شپږ مه دشعبا ن په‌شپږ ویشتمه دمی میاشتی‌پراوه ویشتمه نیټه انگر یزی لښکر و سهار وختی پر سپین بو لدك ناڅا په حمله‌وکړه دښمن دخپلو زیا تو لښکرو دمقایسی له مخی دسپین بو لدك نیو ل دکو چنیانو با زی‌بللی ددغه محاذانگر یزی جنرال وآپ شیر دکندهار دنیو لو له‌پاره ۲٤ سا عته وخت ټا کلی ؤ مگرد سپین بو لد ك ددفاع کوو نکو اسلامی جذ بی‌او پښتنی غیر ت‌دوی ته‌دا موقع ور نه کړل چی تر اوو ساعتو سختې جگړی دمخه د قلعه جدید دروا زی ته ور نژ دی سی‌څکه ئودا ټکل سوی جنگی نقشی طرحه کوونکی ددغه مقا ومت او ځنډ پـــه

سبب چی دجگړی نقشه یی ور بدله کړه خپل ځان ووژی.

کوم وخت چی دانگر یزا نوقواوی تر قلعه جدید چا پیری سوی نودهر څه دمخه یی دافغا نی عسکرو څخه دتسلمیدو غو ښتنه وکړه او سپین بیرغ یی پور ته کی مگر غیر تمنو افغا نانو ددوی ددی غو ښتنی‌جواب دتوپك په خو له ور کړ اود جنگـــ له‌پاره یی خپل تیا ری اعلان کی د پښتنواو فر نگیا نو تر ما بین جنگك شروع سو انگر یزی منصبدا رانو گورگهه فوج ته دپیشقد می امورکی دتوپکو توپو اوالو تکو څخه یـی‌د گو لیو او ر ید ل شرو ع سوه‌پښتنو غاز یانو هم له هغې وسلی څخه چی درلوده یی‌کار وا خیستی دیوی خواد جوزا دمیاشتی سختی گر می اودبلی خواد ددښمن دیر ش زرو مجهـــزو عسکرو سره ددرو سوو تنو عسکرو اوملي قواؤ مقابلی‌دحو صلی اوثبات امتحان اخیست همد غه رنگه پښتنو میرمنو دگو لیو په سختو بارانوکی داوبو گټوری افغا نی غا زیانو تـــه

رسول عبدا لرحمن خان ټولیمشراو زوی یی ددغه جنگك په لومړی حمله کی شهیدان سول‌د عبد الرحمن خان ما ینې دمیړه او زوی شها دت‌ولیدی مگر دی خپله اسلا می مجا هده‌او پښتنې وظیفه پری نه ښول اود اوبو گټوری یی دکلا پر کنگرو با ندی‌یو په‌بل پسی غاز یانو ته رسول اوبه لوړېږغ بی ناری وهلی ،ای‌توریالیو غازیا نو سړی‌یو پلا مری داجل غشی سل گزه بر لری بی اجله څوك نه مری هاې داسلام پر ننگك ځانو نه قربان کړی اود پښتنو نوم اوناموس وسا تی.

دجگړی دزیا ت شد ت په وخت کې دتوپ گو لی دکلا پر هغه برج‌ومښتل چی افغا نی کر نیل داود شاه خان هلته دمدا فعی نظم او ترتیب له پاره ولاړ او غیر تمن پښتا نه یې‌مجاهدی نه‌تشو یقو ل په دی گو لی دکلابرج ونړیدی او پخپله داود شاه خان هم زخمی شو دو هم ځل بیاد غلیم‌گولی

**نور په نهم مخکی**



**دا تابلو دیوه خارجی نقاش په‌لاس‌رسم شوی ده چی څو تنه افغانی‌مجاهدین داستعمار سره په سنگر کـــی دمبارزی‌په‌حال کښی ښیی اود افغانی‌شهامت او میړانی څر گندونه کوی.**

۱ــ د ۱۳۵۱ کال دکب دمیا شتی دلمر مجلی یوویشتم مخ وگوری.

# کندهاری خطاطان

**(۲۰) ـ سید عطا محمد شــاه**

د عبدالرحمن الحسینی ،ملا محمد حسین ، میرزا صفدر علی او محمد عمر تر مړینې وروسته پــه افغانستان کښې د کندهار دخوشنو



**مشتاق سید محمد**

له سید انو څخه یو زلمی د عطامحمد الحسینی کندهاری په ذمه سره په نستعلیق لیک کښې د میر علی او میر عماد دلیک په پیروی داسنادی درجې ته ورسیدی او د امیر عبد الرحمن خان په امر یو کتاب په نستعلیق خط سره ولیکی چې دامیر ډیرخوښ شو او وی ناز اوه فکری سلجو قی لیکی چې دی د خلیفه ملا محمد حسین له شاګردانو څخه ؤ چې د خپل تیز فکر په اثر سره یې پــه نستعلیق لیک کښې نظیر نه درلودی او په دې فن کښې دخپل عصر نابغه ؤ له خطی آثارو څخه یې دوه جلــده تذکرة الاولیا د کابل په عمومــی کتابخانه کښې شته دامیر عبدالرحمن خان د آرامګاه مدخل د شهر آرا برج د عید ګاه مسجد، د چهل ستون منارد امیر محمد افضل خان د مزار کتیبه دده په لاسی لیکل شوی دی .

د ۱۳٤۱ قمری کال د صفری پر شلمه چې له ۱۳۰۱ لمرنی کال سره مطابقت لری مړ او په قلعه قاضی کښې ښخ دی.

**۲۱ـ سید محمد رسول**

د سید عطا محمد حسینی کشر

**دنجیب تتبع اولیکنه**
**شپږمه برخه**

ورور په لو مړی سر کښې دمحمد زمان خان بارکزی په عوض کښــی (خازن الکتب) یعنی دحضور کتابدار مقرر شو بیا یې له ۱۳۰۹ شمسی کال څخه تر ۱۳۱۸ شمسی کال پورې خو عمر د صکوکو د معاون په حیث او بیایې د کابل د عمومی مطبعې د دوهم مر ستیال په حیث کار وکړ په نستعلیق خط کښې یې د خپل مشر ورور پیروی کوله د حسن خط کومه نمونه یې وجود نه لری د ۱۳۲۰ شمسی کال د حوت په میاشت کښې تقریبا د اویا کالو په عمر په کندهار کښې وفات او ددغه ځای په عمومی هدیره کښې ښخ دی .

**(۲۲) محمد فاروق حسینــــی**

دسید عطا محمد شاه حسینــی مشر زوی ؤ په نستعلیق خط کښې یې دپلار په پیروی ډیر خوش خطــه



**دهیواد مشهور خطاط ښاغلی سید عطا محمد**

لیکنه کوله د لیک نمونه یې (الفاروق) دکابل طبع ده .

**(۲۳) سید محمد عثمان حسینی**

د سید عطا محمد شاه کندهاری دوهم زوی ؤ د پلار په ډول یــی نستعلیق خط لیکی .



(۲۰ نمبر)
ښاغلی شیخ محمد عطا مر کندهاری

**(۲٤) سید محمد جان آغا .**

سید محمد جان آغا دسیدعطامحمد زوی په نستعلیق او نسخ لیک کې دپلار د سبک پیرو ؤ د (٦۰) کالو په عمر مړ او دکندهار په عمومـــی هدیره کښې ښخ دی دلیک نمونه یی لاس ته رانغله .

**(۲۵) سید عبدالمجید آغا .**

دسید محمد جان آغا زوی اود. سید عطا محمد شاه آغا لمسی پــه نستعلیق خط کښې ډیر ښه خطاط دی اوس د مسن توب له حیثه څخه نشی لیکلای د لیک نمو نه که څه هم ما ډیر تلاش وکړ خومتاسفانه لاس ته رانغله .

**(۲٦) سید فیض محمد آغا .**

د سید محمد جان زوی او دسید عطا محمد شاه لمسی دی دنیکه دلیک په پیروی کله کله نستعلیق لیک لیکی

**نور په ۲۷ مخکی**



**دسید محمد د خط نمو نه**

احسان الله آرینزی داقتصـادی ورځنۍ محصل

# په افغانستان کی د نساجیو صنعت
# او
# د هغی په رڼا کی د کندهار ولایت ته یوه لنډه کتنه

دکند هار دسپنسینو ټکرانوفابریکه به د کاله څلویښت ملیونه متره اود ورینو ټکرانو فابریکه به دکالـــه شپږ سوه زره متره ټکر تو لیـــد کړی.

* * *

دغو دووفابریکوپه فعالیدوسره به دشپږ زره پنځه سوه تنو له پـــاره دکار زمینه برابره شی .

په ۱۳۵۵ کال کی چی دهیواد دوالمیزی او اقتصادی پرا ختیا اووه کلن جمهوری پلان دعمل دګر ته راووت او په تطبیق یی لاس پوری شو. په دی پلان کی د صنایعو په سکتور کـــی د نورو صنعتی تولیداتو په څنګ کی دنساجیو دصنعت پرا ختیا ته هــم



په عکس کی دسپنسینو ټوکرانو داودلو فابرکی هنګر او ما مورینـــو دهستوګنی کورونه لیدل کیږی

توجه شوی ده ځکه دا صنعت په هیواد کی داوړو موادو، دحلاجی دستګاوو اوتخنیکی پرسونل دشتون والی له امله دیر وسمتونز وسره نه دی مخامـــخ اود پراختیا اوپرمختیا له پاره یی په هیوادکی دننه پراخ امکانات شته.

دکندهار ولایت دسپنسینـــو او ورینو ټکرانو فابر یکی په دی لړکی دیادولو وړ مقام لری چی په دی لیکنه کی پری خبری کوو (سر بیره پردی داووه کلن پرمختیایی پلان په اړدو کی دهرات دسپنسینوټکرانو فابریکه په تولید پیل کوی چی دکاله بـــه دوولس ملیونه متره ټکر تو لیـــد کړی. دبلخ دنساجی ظر فیت بـــه دوولس میلیونو مترو ته اوچت کړه شی. دپلخمری دنساجی تو لیـــدی ظرفیت به له اته ویشت میلیونـــو مترو څخه څلو یښتو میلیو نومترو ته وررسول شی اود کندز دنسا جـی دفابریکی دسروی او جوړو لو چاری به پیل شی چی څلویښت ملیونه متره تولیدی ظرفیت به ولری.)

**۱- دکندهار دسپنسینو ټکرا نـو فابریکه**

دا فابریکه چی څلیرو یشـــت میلیونو ډالرو اودوه سوه دوه اویـــا میلیونو افغانیو په لګښت ترزاتلو نکو دوه نیمو کالو پوری بشپړ یږی څلو یښت ملیونه متره کلنی تولیدی ظرفیت لری. سر بیره پردی بـــه دافابریکه په کال کی زر ټنه سپنسی هم تولیدوی.

ددغی فابریکی دودانیو دجوړو لو تړون ۱۳۵۵ کال دوری دمیا شتـــی په نولسمه نیټه دکانو او صنا یعو دوزارت د صنایعو دریاست اودافغانی ساختمانی دستګاه ترمنځ لاسلیک شو ددغه تړون له مخی افغانی ساختمانی دستګاه دفابریکی ودانی ،هنګرو نه د مامورینو اوکار ګرانو دهستو ګنـی ځایونه اونوری ضروری ودانی د۱۳۵۷ کال تر نیما یی پوری ودا نـــوی. دغه تاسیسات دکند هار ښار په پنځلس کیلو متری ختیځ واټن کی ددوه سوه څلویښت زره مربع متره ځمکه د پاسه دڅلور سوه دوپنځوس میلیو نـــو افغانیو (چی داوو میلیونه اته سوه شپیته زره ډالرو سره سمون خوری

نوپه ۲۹ مخکی



دسپنسینو ټوکرانو فابریکی ته د[illegible] رسیدلی سامان آلات چی دکرینو په واسطه را کښته کیږی.

دجګدیش عکاسی

رحمن دوست:

# د کندهار د ادب خیزه ځمکی د ادب یوه بله ډیوه

## چی په لیکنو کی یی د وطن مینه د درد او احساس پروت دی

دکند هار مجلی تل د خپلو پاڼو برمخ دهیواداوددی تا ریخی، لرغونی او دښتنی افتخار را تو څخه دڅکـــی سیمی نو میا لی ،مشها هیر ادیبـان لیکوا لان، شاعران ،مبار زین اومجا هدین معر فی او ددی خاوری بچیانو ته یی ور ښیژ ند لی دی چی نه یوازی یی ئه‌کار نامو سره وویا ړی بلکه پخپلو کړو اود ژو ندانه په لاروچارو کی یی سر مشق‌هم وگر زوی دمجلی دغه خدمت ،هغی او هاندو نه نـــه هیر یدو نکی اود هر ډول قدر او ستا ینی وړ دی.

دکندها رتا ریخی ښار چـــــی دآزیا یی بر م او ښتنـــی عظمـــت او غیرت ډیر لوی او کلک‌مر کز دی تل یی پخپله پا که غیږه او لمن کی نا لمان، قا ضلان ،لیکوا لان،ادیبان اوولسی شا عرا ن روز لی اوبیده کړی دی، په او سنی وخت کی هم دباد رده ،تکړه‌اوتجر به کارواشخاصو څخه چی دلوړ او ژورفکر درلودونکی دقلمی نبوغ‌اوادبی قریحی خاو ندان دی. خا لی نه دی‌پاته شوی چی‌هغوی به‌تل دتا ریخ په وړا ندی ژو ندی اوتوم به یی رو ښنا نه پا ته وی.

دادی بیا هم ددی مجلی په دی گڼه کی ددغه سیمی دادبی بزم یـــوه بله‌ډیوه چی د ښه قلم خاو ند اود قلم په څو که یی درښتنی خد مت‌په عزم زیات شمیر ادبی ،علمی،دینی اجتما عی اواخلا قی لیکنی کړی دی در پیژ نو.

دا ښاغلی الحاج حبیب اللـــه (سر پاس) دی نو موړی په ۱۲۸٤ شمسی کا ل زیږ ید لی او س هم ژوندی اود ادب چمن پری ښکلی‌دی دمرحوم عبد الر حمن زوی اونیکه نوم یی محمد غیاث‌دی په‌ختیه بارکزی اوپلار او نیکه گانو اصلی مینه یی دارغسنا ن دکار وا ن کڅی کلی دی چی دلوی احمد شاه بابا په زما نه کی خوا جه علی بابا ته چی دکندهار ښارد جنو ب په شپږ میلی کی‌پروت دی‌را نقل شوی او بیا له همد غه ځایه ددوی مر حوم پلار د کند هار ښار ته را غلی دی دا چی پلار یی‌د



ښاغلی حبیب الله «سر پا س»



دښاغلی حبیب الله سر پا س‌د ځوانی عکس

خپل وخت‌په شاهی گارد کی‌منصبدار ؤنو ښاغلی سر پا س په‌کا بل کی دی‌نړی ته سترگی رو ڼی کړی دی اوبیاد خپل پلار سره په ۱۲۹٦شمسی کال کند هار ته را غلی اوتر اوسه

هم دلته هستیږی.

ښا غلی سر پا س چی او س۷۲ کلن اود خپل عمر زیا ته برخه یی تیره کړی ده ولی بیا هم ډیر تکړه اوبیداره ښکا ری د مطا لعی او کتاب لوستلو حو صله او شوق لری،دوطن مینه او درد یی دخبرو څخه‌له‌وزایه څر گند یږی په خبرو کی یی‌داخلاص اوصمیمیت رمز نغښتی او پر یوه موضوع تر هغه وخته قضاوت او فیصله نه کوی څو چی په معقـول استد لال او منطق سره یی قنا عت نه وی حا صل سوی.

نو مو ړی دښه ادبی قلم خاو نداو په‌ادب کی یو ره‌وارد او ړکا ملاتسلط لری په اردو او عر بی ژبو هم‌تریوی اندازی پو هیږی‌دښه خلق‌درلودونکی اوپو متوا ضع سړی ښکا ری کـــه څه هم د۳۷ لمسیا نو او کړو سیانو څښتن دی بیا هم دځوا نانو په‌ادبی اوعلمی مجلسو نو کی کښینی او خوند تری اخلی او پخپل ژوند کی‌یی زیا تی علمی اوادبی مبا حثـــی او مجلسو نه کړی دی دده په قول چی اوس هم ددار نگه مجلسو نو لیوال دی.

کله چی‌می وغو ښتل له نژدی‌ور سره ووینم په ډیره مینه یی زمادا غوښتنه ومنله دنوموړی څخه زمـــا

شعری طبع هم لری دپښتو اودری لو مړنی پو ښتنه‌داوه چی دڅو کلونو راهیسی دادب نړی‌ته‌را دا خل سوی اولیکوالی‌کوی زیا تی لیکنی دی پرڅه ډول مو ضو عا تو با ندی‌کړی دی.وی ویل: دا چی ما قلم په لاس کی اخیستی دی زیا ته مو ده کیږی

ولی د ۳۵ کلونو را پد یخوا دهیواد دمطبو عا تو سره همکا ری لرم اوله دی لاری می ادبی، علمی اخلا قی، دینی او اجتما عی مو ضو عات‌لیکلی اوخپر لی دی.

دښا غلی سر پا س څخه مـــــی وغو ښتل چی‌د خپل ژوند په هکله پر لند ډول نی نظر وا چوی وی ویل خپل لوم ړنی زده کړی می دکا بل‌او کند هار په ښوونځیو کی کړی دی اومنځنی تعلیما ت می په حر بـــی ښوونځی کی سر ته رسو لی دی‌د ۱۳۰۵ کال را وروسته می‌د ۲۲کلو نودپاره ددو لت په‌بیلا بیلو دایرو کی هم وظیفه تر سره کړی ده وروسته تر ۱۳٤۰ کا له پوری می تجا رت‌هم کړی دی دهیواد پر ټولو ولایا تو سر بیره هند او پا کستان ته هم څوځو ځله تللی یم دحج‌د فریضی دادا کولو په‌نیت می عر بستان ته هم سفـــر کړی دی ،په ژو ند کی می زیا تی

ترخی او خو ږی ،لوړی او ژو ری لید لی ولی هغه څه چی زما سره‌یی تل خا طره خو ږه‌پاته ده هغه دهیواد داستقلال او آزادی دبیرغ او جټول او بیا دجمهور یت منبع ته را تلل‌دی چی خاطره به یی همیش له ما سره وی.

ښا غلی سر پا س دلیکوا لی په هکله داسی نظر لری. لیکوا ل باید دقلم په څو که وا قعیتو نه دا سی بیا ن‌کړی چی زیا لستیکی شیـــوه ولری یعنی لیکوا ل با ید دهر څه دمخه د خپلی ټو لنی عینی شرا یط درك اوو پیژ نی او بیاد ټو لنی دوا قعیتو نو تصویر داصلاح او سمون په غر ض دا رنگه‌بیان کړی چی‌دهری سویی خلك په پوه شی. یو لیکوال باید دخپلو نو شتو او لیکنو پــــه چو کا ټ کی دعقل اواحسا س څخه په‌کار اخیستلو سره هغه څه بیان کړی چی ټولنه یی غوا ړی لیکوال باید خپلی اد بی لیکنی شخصی‌اود په مصنو عی موا زینو ککـــړی نه کړی

دده دآثا رو په باب می پو ښتنه ځنی وکړه وی ویل که څه هم تر اوسه پوری زما آثار نه دی چا پ سوی ولی ماد خپلو لیکنو او مقالو یوه بشپړه مجمو عه را غونډه کړی اودریا ضی او حسا ب یو کتاب‌می ترالجبر پوری مسوده کړی دی د تقویم استخرا ج په نا مه می همد یوه کتاب په لیکلو پیل کړی چی‌د بشپړ تیا او چاپ په صورت‌کی ـــه نجوم دعلم په برخه کی د هغو کسانو دپاره چی د دغه علم سره علا قه لری مفید تمام او زیا ته گټه به‌ور څخه وا خیستل شی هیله می داده چی ډیرژر هغه بشپړ او په خپـــل ژوند کی خپل لیکلی آثار چا پ اوډ هیواوا لو دلو ستنی او استفا دی‌په غرض یی ټو لنی ته وړا ندی کړم.

ښا غلی الحاج‌حبیب الله‌سر پاس سر بیره پر دی په متداو له علومو کی همد ښی مطا لعی خاو ند او تر یوی اندازی معلو مات لری دتصوف دعلم څخه هم یی برخی نه دی ددغــه ښاغلی لیکنی د۱۳۲۲ شمسی کال‌را پدیخوا دطلوع افغان په ور ځپا ڼــه

نور په ۳۹ مخکی

# محمد صدیق ادبیار

نجیب

دکند هاری شا عرا نو اولیکوالو دبیژند گلوی په سلسله کی دکند هار مجلی محتر مو ویونکو ته یو ځلمی شا عر چی له اوه کلنیتوب څخه یی له شعرو شا عری سره زیاته مینه پیدا شوی ده معر فی کوم.

دا شا عر اوادیب خپل نوم محمد صد یق او تخلص ادبیار ښیی وایی



محمد صد یق( ادبیار )

زه په ۱۳۲٤ شمسی کا ل کی دکندهار په دوهمه نا حیه کی په یوه غر یبه کورنی کی پیدا شوی او په ۱۳۳۰ کال کی دمشر قی ښوونځی ته دا خل شوی یم پسله شپږ می ټو لگی څخه داقتصادی مشکلا تو له امله څو عمر له تحصیله څخه محروم پاته شوم په ۱۳۳۹ کال کی بیاد تعلیم شوق را ته پیدا شو اود احمد شاه بابا دلیسی ۷ ټولگی ته داخل شوم په ۱۳٤۹ کال کی دنومو ړی لیسی له دو لسم ټولگی څخه فارغ التحصیل او سمد ستی می په مشر قی لیسه کی دکتدا بداری وظیفه اشغا ل کړه تر او سه پوری پردغه وظیفه با ندی با قی پا ته یم.

ښا غلی محمد صد یق (ادبیار) داهم وایی چی دکوز نی مشرا نو په زه له شعر او شا عری له شغله څخه منع کو لم اوزا ته ویل به یی چی په شعر ا وشا عری کی دنیستی اثر پرو ت دی ما ددوی ودی لا یعنی ویناو ته اهمیت نه ور کا وه او په علمی ادبی او اجتما عی کنفرا نسونو کی به می تنقیدی اجتما عی او علمی مضا مین دشعر په ژبه ویل چی پر اوریدو نکو به یی ډیر اثر اچاوه اود دلچسپی مورد یی گر زید لی اوددوی دی دتشو یق او قدر دانی به په ما کی لادشعر ویلو حس قوی کاوه او شعری ملکه می پسی زیا تید له مقصد دادی چی له یوی خوا څخه دبا ذوقو ځوانانو حو صله افزا یی او له بلی خوا څخه دنورو اوزړو استادا نود دیوانو مطالعی زما شعـــــری او ادبی قوه قوی کړی ده.

رښتیا هم داده چی د ښاغلی ادبیـار شعر او لیکنه که څه هم خا ص ادبی ابتکار نه لری مگر انتقا دی اوفکاهی اغیزه لاکه یی گر زو لی دی دلاندنی منظومی څخه چی د نمو نی په توگه وتاسو ته وړا ندی کیږی داســـی معلو میږی چه د نوموړی له سا ینس اوالجبری له مضمو نو سره نه وه جوړه نو ځکه دهغو گټورو مضامینو په شکا یت خو له خلا صه کړی او له تحصیله څخه یی دبیزا ری اظهار کوی.

## دښاغلی ادبیار دکلام نمونه

قرآن کریم ښه دی دهر مو من په زړه دی ـــ دټولو خو هم زده دی

دانور مضا مین سخت دی زما اول دغه بیان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

دنیات شمر یف قر با ن شم

پوه بی په بیان شم ـــ په مینه بی گویان شم

هرڅه پکښی بیان دی

بیله شکه نما یان دی

الجبر خورا گرا ن دی

* * *

زما خوښه ده پښتو ـــ لیکم یی په پېتو ــ په هرراز صفتو

سلام و هغه چا ته چی یی خو بښ دغه داستان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

چه نه لرمه لوټ، نو نه کو مه سپورټ ـــ خیر یږی می بیا بوټ

په ستر گو ور ته گورم دسپورټ دغه میدان دی الجبر خوراگران

* * *

آخر می سو په یاد ـــ چه نوم یی اقتصاد ـــ حا صل به می سی مراد

تر ټولو شیانو ماته دغه راز مضمون آسان دی.

الجبر خورا گران دی

تر تیب یی قا فیه ده ــ خو بیا جغرا فیه ده، یارانو ته ملیه ده.

هاخط استوا یی په څه ډول ویران دی

الجبر خورا گرا ن دی

* * *

دا دورد مریخ دی ــ اوقات می خــورا تریخ دی له ماخه ورك تا ریــخ دی

سبا به پر سا ن وکړی گو ډتیمور چیری سلطان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

عربی می پوره نه سوه ــ زما اریـــان زده نه سوه ـــ ما غزه می په چپه سوه

په هره ورځ کو ټل دی څه حاجت ددی بیان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

په رسم کی یم پا ته ــ داوایم زه و ناته ــ راویی ښیی ماته.

تر سره یی زه ورکش کړم چی داسی پهلوان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

اوم یی هند سه ده ـــ ومو ږ تی خلا صه ده ـــ خو زه یی هم قصه ده

وایی دایی مثلث دی دا یی زا ـــــ دایی بیان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

فزیك خو هم زحمت دی ــ بر قـــــی مقاو مت دی ـــ ها دی یی سلامت دی

ناقل بر ق یی راسا متنا سـب هغه زمان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

از فار سی شدم کباب من چه دهم جواب ـــ که ندارم کتاب

هیچ کس کتا بچه نمی دهد وایی زما تاوان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

دکیمیا دی او کسا یدو نــــــه، او سخت یی جوابو نه کوم یی بیانونه

تقطیر یی ور معلوم که چه یـــی وروسته بیا میتان دی

الجبر خورا گران دی

* * *

## دتاریخ په‌اوږدو کی...

راغه او برج یی ولړزاوه دا خل بیا داود شاه خان سخت ټپی سواودکاره ولویدی.

په دی وخت کی د افغانی غازیانو مشر توب محمدیوسف خان ټولیمشر په غاړه وا خیستی دپښتنو دعسکرو اوانگر یزا نو تر منځ سخته جگړه بیل سوه دغی جگړی په خورا سختی سره دوام وکړ دجوزا دمیا شتـــی ټاکنده غرمه وه دسپین بو لدك دښت دتنور په شان تودودغلیم گولی دژلیو په شان اورید لی مگر بیا هم پښتنو غازیانو دایمان په قوت او پښتنی غیرت سره د دښمن دتو پو اوالوتکو مقابله کوله اوافغا نی زلمیانو دغلیم سره په سخته جگړه بوخت وه دانگریزانو بمو اوگو لیو دکلا جدید دکلا څخه د دکلای جدید دکلا څخه د بست کنډو لی جوړی کړی دغا زیانو په وینـــو دکلادیوا لو نه ورنکید ل دجگړی په ډگر کی دپښتنو ددروسوو تنوغیر تمنو ځوانانو څخه یوسل پنځوس تنو دهیواد دآزادی په لاره کی دشهادت جا مونه وڅښل پا ته یو نیم سل تنه دانگر یزا نو سره په جگړه کی سخت زخمیان شول کله چی استعمار گرا نو داحال ولیدی نود هر لوری څخه یی پــر افغا نانو هجوم راوړی او خپلی حملی یی نوری هم پسی سختی کړی لیکن د آزادی مینو پښتنو قلعه جدید په دروازه کی دبر چو اود تو پك په گوزدا غود دښمن دتا پا که تعر ض څخه وښیو له په دی وخت کی د پښتنو دعسکرو مشر محمد یو سف خان هم پر سر داسی سخت زخمی سو چی د مړی څخه یی فرق نه کیدی او څو شپی دهغه زخم څخه په سد کی نه ؤ ده دجگړی په میدان کی هغــه

پاتی په‌لسم مخکی

دراشد ژباړه

# دملګرو ملتو دموسسې ودانۍ

دیرش کاله دمخه یو بین الملـــــي ډله لس کمیزه دمهند سا نو او متخصصینو تیم دملګرو ملتو دنوي جوړې شوي ودانۍ دطرحې او دیزاین کار چې هغه ددوهم جهاني جنګ د خطرانو د ښخیدو او سو لې او عدالت ته د رسیدو ځای دی، شروع کړ.

ددوی دکار نتیجه دملګرو ملتو د موسسې ودانۍ جوړېدل دي چې په نیویارک په ښارکې تر سره شو.

دغه لویه ودانۍ چې په هغه کې د ملګرو ملتو موسسې دارالانشاء واقع ده نهه دیرش پوړه لرې ددې ودانۍ سر بیرنه منظره چې په هغه کې دسیمینټو المنیو مو او ومرمرڅخه استفاده شوې ده دغه جهاني ودانۍ ته خاصه ښکلا ور کړې ده او دنیویارک دښار دشهرت سبب ګرځیدلې ده.

دغه وخت چې دملګرو ملتو دموسسې دودانۍ دجوړېدو دپاره مناسب ځای دپیدا کیدو په غرض خبرې روانې وې د نړۍ څخه بیلا بیل پیشنهادونه په دغه باب دملګرو ملتو موسسې ته ورسیدل یوه خو په یاي کې د امریکا دمتحدو ایالاتو دکانګرس بلنه قبوله شوه چې دملګرو ملتـــو دموسسې ودانۍ باید په نیو یارک کې جوړه شي.

په دې وخت کې هیچا نه سوای کولای دا خبره پیش بیني کړي چې دغه ودانۍ به یوه دګڼه ګو ڼې څخه به ډک اود مسلخو نو اوکوچنیو صنایعو په بر خه کې په نیویارک کې جوړه شي او همدا رنګه دنیو یارک دښار دشما لي برخې با ستن ،فلاډلفیا او سانفرانسسکو ته دملګرو ملتو ددارالانشاء دانتقال په بـــاب زیات پیشنهادونه وشوه.

دملګرو ملتو دموسسې داو سنۍ ودانۍ دټاکلو تصمیم هغه وخت زیات قوي شو چې جان دي راکفیلر اراده وکړه چې د خلیج یو شمیـر ټوټې کې په اته اعشار یه پنځــه ملیونه ډالره را نیسي اود نیویارک ښار ته یې سو غات کړي.

دملګرو ملتو دموسسې دودانۍ دجوړېدو لګښت دامریکا دمتحدو ایالاتو دحکو مت د٦٥ ملیو نه ډالره پور څخه چې هیڅ ربح یې نه درلوده اوړول شوه چې دیرش کال تر پایـــه پورې ٥٨ ملیو نه ډالره یې دامریکا دمتحدو ایالا تو دو لت ته ور کول کیږي او پاتې نورې پیسې به یې تر ١٩٨٢ کال پورې په کښتنو نو سره ورکول شي.

ددغه لویې ودانۍ څلور پوړو نـــه چې دیوه سینټیمي برج په شکل معلو میږي دملګرو ملتو دمو سســـې د کنفرا نسو نو او عمو مي غو نـــډې دجوړ یدو ځای دی دعمو مي غونډې په سا لون کې چې په آبي شنه اوطلايي رنګو نو سره ښکلې شوی دی د نړۍ دبیلو بیلو هیوادو نما ینده ګان غونډه کوي چې هر نما ینده ته یوه دانه (آیرفون) یعنې دآواز اخیستونکي ګوشکي اختصا ص شوي دي چې په دې صورت دوی کو لای شي څــود خوښې دخبرې کوو نکي آواز په خپله ژبه اویا هم دتر جمې په وخت دملګرو ملتو د موسسې دشپږو رسمي ژبـــو یعنې عربي ،چیني ،انګلیسي،فرانسوي روسي او هسپا نوي سره واو رې دتر جمې کار دیوې ډلې تر جمانانو په وسیله چې په خپلو مخصو صــو ځایو کې نا ست دي اود غو نـــډې سالون یې هم تر نظر لاندې وا قـــع دي تر سره کیږي.

ا ؤ هر کله چې یو نما ینده وغواړي دیوې مو ضوع په باب رایه ور کړي هغه غو ټه چې دده په مخا مخ میز کې واقع ده کښیکاږي درا یـــي ورکولو نتایج په هغو لویو صفحــو کې چې دویو نکي دتر یبون تر شـــا واقع دي په الکترو نیکي شکل څرګندیږي.

ددغه جها ني مو سسې غړي ورځ په ورځ زیا تیږي ځکه هغه وخت چې دملګرو ملتو دمو سسې ودانۍ دجوړیدو طرح تر کار لاندې وه دغـــې جها نی مو سسې فقط ٥٧ غــړي درلودل خو په هغه وخت کې د ٧٠ غړو دقبلیدو دپاره تیاری ونیـــول شول.

تر ١٩٥٥ کال پو رې دغه رقم نور هم زیات شو څر نګه چې په ١٩٦٤ کال کې د ١٢٦ هیوادو دپاره په دغه جهاني مر کز کې دځا ییدو تدا بیر ونیول شوه دملګرو ملتو دمو سسې او سنۍ غړي ١٤٧ ته رسیږي چـــې ددغې ودانۍ دپرا ختیا دپاره د١٢ــ ملیو نو دا لرو په مصرفیدو سره تر اجرا لاندې دي.

په ټو له نړۍ کې دملګرو ملتو دــ موسسې د ١٨٠٠٠ تنو کار کوونکو دجملې څخه نفر یبا شپږ زره تنـــه یې ددارالانشاء په ودانۍ کې متمرکز دي چې په هغو کې دتر ١٣٠ هیوادو زیاتر نما یندګان هم شا مل دي.

ددغه ودانۍ دځا صو ممیزا تو څخه دا ی چې ددغې ودانۍ په هره ګوښه کې دامي شیا نو او لوازم لیـــدل کیږي چې دنړۍ دبیلا بیلو هیـــوادو څخه دسو غا ت په ډول راوړل شوي دي په دغو شـ میا نو کې دمو بلونو فرنیچر او مجسمو بیلا بیل ډو لونه شا مل دي.

دملګرو ملتو دمو سسې اودامریکا دمتحدو ایالا تو دتوا فق په اساس ددارالانشاء مرکز دیو شمیرامتیاــ زاتو او حقو قو څخه بر خوردار دي مثلا دغه جهاني مر کز په پار سلونو او مرا سلا تو با ندې ددغه جها ني مر کز دېستې ټکټکو نو داستفا دې حق لري.

تر او سه پورې د نړۍ دبیلو بیلو برخو څخه تر ٢٢ ملیو نو زیا تـــو خلکو ددغه لو یې ودانۍ څخه کتنه کړې ده.

ددغه ودانۍ په بې شمیرو برخو کې منظمې اولو یې قسمچې شتــــه چې د ملګرو ملتو دمو سسې مر بوطو اطلا عاتو فیصله لیکنو او ویډیا ز په شا مل دي چې ددغه مر کز څخه کتو نکي کسان کولای شي د هغــو څخه استفاده وکړي.

همدا رنګه په دې ودا نۍ کې یوه لویه ودانۍ هم شته چې په هغه کې یوه لویه مغازه هم شته چې په هغه کې دبیلا بیلو هیوا دو شیان شته او هلته خر څیږي.

دملګرو ملتو په غړو هیوادو کې لوی هیواد چې زیات نفو س لري د چین ولسي جمهو ریت او کو چنی یې مالدیو دی.

هغه بیلا بیلې آسما نتیا وې چـــې ددغه لو یې ودا نۍ په کښتنه بر خه کې دکتو نکو دپاره تیاري شوي دي ددغه جها ني مهم لوی مر کزد پراخو تشکیلا تو او انتظام ښکا رندوی دي.

# دتاریخ په اوږدو کې...

اوخو شپې دهغه زخم په سد کې نه ؤ کې او پخپل منځ کې یې په جنګ

ده دجګړې په میدان کې هغـــــــه غیرت وښود چې دپخوا نیو میړونو کیسې یې سرې تهورپه زړه کولې کله چې د کند هارد محاذ قو ماندان عبدـ القدوس خان «اعتماد الدو لــــه» کند هار ته راور سیدی لو مړی یې دکند هار وا لی دکار څخه ګو ښه کړ اوبیا یې دانګریزا نو پر ضد دملي جهاد ږغ پور ته کې په کند هار کې په زرهاوو نفر دغلیم سره دجګړې په خاطر په داو طلبانه تو ګه دعبدا لقدوســـــ خان اعتماد الدو له تر قیا دت لاندې دسپین بو لدك لورې ته رهی سول انګر یزی تیری کوونکو چې په ځان کې د جګړې توان نه لیدی نو په داخلې سبوتا ژیې لاس پورې کې اوپه دې لیته کې سول چې په دا خل کې د پښتنو تر مابین دبی اتفا قی اوزبل

اخته کې مګر پښتنو خپل اصلي دښمن ښه ترا پیژ ند لی ؤ اوددوی ټو لې ورشنۍ کړل اود غلیم په مقابل کې ورشنۍ کړل اود علیم په مقا بل کې یې په سخته جګړه لاس پورې کې پر آزادۍ مینو افغا نانو دافغا نستان په ټولو سیمو کې غلیم ته فا حشې ماتې ورکړې اود ټمل دچو نۍ په نیولو سره انګر یزانو بیله دې څخه چې دافغاــ نستان خپلوا کې په رسمیت وپیژنې بله لاره نه لیدله هغه ؤ چې د١٩١٩ـ میلادي کال داګسټ دمیا شتې پـر اتمه نیټه دافغا نستان سیا ســـي آزادي ومنل په ډیر بداو شرم اوزه حا لت دافغا نانو دخاو رې څخـــــه شرمنده ووتل اوپه دې تو ګه افغانانو په خپل با شرها مته تا ریخ کې یـــوه رنګینه پا ڼه ثبت کړه.

دنظر محمد انگار لیکنه

# لمر یادانرژۍ نوی منبع

دعلم او تخنیك د پرمختیا سره‌سم بشر د هوسا ژوندانه دپاره راز راز تخنیکی وسایل‌اوماشینی‌آلات اختراع اوجوړ شوی دی چه‌په واقعیت‌کی‌د انسانانو پر نننی ژوند باندی ژوره اغیزه اچوی .

دغه دمدنی ژوند وسایل او آلات چه‌د عصری‌ژوندون‌سره‌نه شلیدونکی پیوند لری هغه گرځنده ماشینان‌دی چه‌دهغو دپه‌کار اچولو دپاره‌انرژی‌ته پوره اړه پیدا کوی ځرنگه چه دنړی نفوس دیوی خوا مخ پرزیاتوالی‌دی‌او دبلی خوا هغه کانی منابع چه دځو پیړیو راهیسی د بشر د استفـــادی وړ گرځیدلی دی احتمالا مخ پرخلا۔ صیدو دی دهمدی کبله د نړۍپوهان پدی عقیده دی چی بنایی نړۍ‌دانرژی دبحران سره مخامخ شی ځکه نودوی اوس پدی لټه‌کی دی چی د طبیعـــی منابعو څخه انرژی لاس ته‌راوړی‌ځکه دغه‌شان منابع لکه لمر اوباد هغه‌منبع کانی دی چی هیڅ وخت یی د انرژی دخلاصیدو امکانات نه شته .

لمر په طبیعت کی د ډیری زیاتی انرژی منبع ده نو که چیری دهمدغه منبع څخه دبشر د انرژی اړه‌برابره شی نود انسانانو راتلونکی ژوندهم دانرژی دبحران څخه ژغورل کیدای شی.

پوهان وایی چی‌لمر اوباد دانرژی هغه منابع دی چی‌د نړی په هره‌برخه کی‌وړیا پیدا کیږی او هیڅکلـــــه‌نه ږچیږی او نه خلاصیږی اود ژونـــد چاپیریال هم نه کړکیچن کوی اودغه پوزتنی امتیازونه د یورانیم سره‌په مقایسه په وضاحت سره دلمردانرژی ښه والی ثابت کولای شی.

دوی وایی چی د لمر انرژی‌دځمکی پرمخ په نظری لحاظ دوه سوه‌پنځوس زره‌واره د بشر د اوسنی غوښتنی‌او اړی‌څخه زیاته‌ده .دغه محاسبه چی‌په نومړنی توگه دیوی مسلمی احصائیی بنسټ ایږدی بنایی په‌راتلونکی‌وخت کی په عملی توگه وړاندی شـــــی. عقیده داسی ده چه اوس‌دلمرد انرژی څخه چه د ځمکی پرمخ گټه اخستل کیږی په هر متر مربع کی یوکیلو واټ اټکل شوی ده .

په نومړ نیز گام کی د لمر دانرژی څخه د گټی اخستلو کار د کورونواو ودانیو دکوټو او اوبو دتودولو دپاره په انگلستان ، آلمان، متحده ایالاتو ډنمارك او نور هیوادونو کی پیـــل شو همدا راز د لمر او باد دانرژی څخه دگټی اخستلو دپاره په اروپاکی اومتحده ایالاتو په هیوادونو کښی‌د برښنا دتولید د توربین دپه‌کاراچولو دپاره هلی ځلی روانی دی ،پدی‌برخه کی دنړی مطبوعات‌ډیری خپرونـــی کړی دی چه دادی په لنډه توگه‌یـــه‌د هغه یادونه وشی .

تیر کال د انگلستان د سنډی ټایمز اخبار لیکلی ؤ چه‌یوه مهندس دبیتر مار تین په‌نامه چی‌په یوه دری کوټه‌ایزه ودانی کی دخپل کورنـــی سره ژوند کوی د شپږو میاشتـــو راهیسی یی یو پیسه د اوبود تودولو دپاره نده مصرف کړی نومـــوړی مهندس چه دودانیو جوړولو دکمپنی سره کار کوی خپل کور پداســـی آلاتو تجهیز کړی دی چه هغه‌دلمرد وړانگو تودوخی اخلی او بیاد کورپه دننه کی دهمدغی تودوخی پواسطه‌د کورنی د ضرورت وړ اوبه تودوی.

هغه کمپنیو چی دغه راز وسایل اوسیستم جوړ کړی دی عقیـــــده ځرگندوی چی دغه سیستم په یوه‌فت مربع ساحه کی یو گیلن اوبه‌دیوسلو شپیتو فار نهایت په درجوتودولای شی او هم کیدای شی چی دهمدغـــه سیستم څخه‌شیرگرمه اوبه دپنځوس فارنهایت په درجو او هره انـــدازه تودوخی چی د اوبو دپاره ضروروی لاس ته راوستل شی .

دلمر د انرژی په واسطه دکورد اوبو د تودولو د سیستم جوړونکـــی ادعاکوی چی دغه سیستم دژمی په سړو ورځو کی که څه هم دغه‌سیستم برواوری لاندی‌پټ‌وی بیاهم دکورنیو دضرورت وړ اوبه د سلو درجـــو فار نهایت‌په اندازه تودو لای شی .

نور په (۳۵) مخکی



دبادی ژرندی په وسیله دبر ښنا تولیدول



هغه کورچی دلمر دانرژی‌پواسطه تودیږی

دهاروني ژباړه

# په‌لرغوني مصر کی چی به ئی د نیل رود ته یوه ښکلې

په‌تیرو زمانو کی دنیل وادی، تکه شنه د نعمتو څخه ډکه اود بډایــی مرکزؤ. دمصر بزګرو به دنیل پرغاړه دزیتونو د ونو او ځینو نورو حاصلاتو څخه داسی ګټه اخستل چی دوی‌یی‌د نړی دبډایو بزګرو له جملې څخــه ګڼځولی وه .

کله چی به دنیل د رود او بــه راپورته شوی او سیلونه به راغلــه دکرهنی پر ځمکو به‌یی داسی‌زوزوږه ختیه وغورځول چه ځمکه به‌یی‌دسده وایستل نو مصری بزګرو به دکاله دوه‌یلا ډیر په‌زړه پوری حاصل ځینی اخیستی ددی نعمت د شکر د ادایني لا مله به دو ی همــدا سی قر باني ورکول چی دوی په خپل هیواد کښی ترهغه اضا فه نعمت نه‌درلودداقرباني عبارت وه دیوی ډیری ښکلي رنګيني اوممتازی نجلي څخه .

کله چه به دنیل رود طغیان پیل کی مصریانو به په خاصو مراسمو سره اوبوته دا ښکلي نجلي‌ورواچول که‌څه‌هم دا خبره ډیره مشهوره ده‌چی رود ته‌یی نجلي د طغیان دکښته کیدو په‌نیت ور اچول ،ولې څو کاله‌دمخه په‌مصر کی دیوه زرین تابوت څخــه پریوه ډیره په هیرو غلیق لیک یوــ لیکلي شوی نکل لاس ته راغی‌چــی ددی لیک په کشف سره هغــه پخوانی عقیده او خبره رده شوه‌اودی خبری یی ځای ونیوی چی قرباني‌یی‌د نعمت د شکر د ادایني په جهت کول.

داچی دنیل بزګرو به ډیر حاصل لاس ته ور وستي همیشه به‌فرعونان دنړی د بډایو پاچاهانو څخه‌وه‌داځکه چی ددی حاصلاتو ډیره برخه به‌په دوی اړه درلوده .

دهندسی علم هم دغه وخت لــــه همدغه ځایه‌مینځ ته راغلي دی‌پدیـ تفصیل ـ

کله چه به دنیل په رود کی‌سیلونه راغله لکه دمخه چی مو وویل‌د دوی پرځمکو به‌یی نوی ختیه یانوی‌زوره‌ وره‌خاوره ور وغورځوله نو چه‌درود اوبه به کښته شوی خلکو به ونیدل چی د دوی د ځمکویش .پنډول‌اوحد ؤحدود توله سره ګډ شوی دی‌وایی چی ضرورت دایجاد موزده څکه‌نوــ ددی ضرورت پر اساس به دوی پــه ځینو ښتنانیو خپلي ځمکی دګیږي

## نجلي و راچوله

څخه ساتلي مربع، مستطیل اوزاویه مینځ ته راغله چی باید داد هندسی دعلم دایجاد زمانه یاوخت. وګڼو اوپه وروسته کی دا علم دونه پراخ شوچه دستورو پیژندنی علم یی مینځ‌تــــه راوړ او په مصر کی داعلم دونه‌مخ‌ته ولاړی چی دیونان پوهان به دریاضی علم‌د زده کړی دپاره مصر ته ورتله. هغه‌وخت یعنی داوخت چی مصردی حدته رارسیدلي او فرعو نانوسلطنت کاوه‌د ډیرو لیرو هیوادو څخه‌بــــه کاریګران او مزدوران دکارو دپــاره ورتله او هم به دمصر ی متــا عــو رانیونکی د سرو او سپینو زروسره ور زوان ؤ. دمد یترا نــی د غا ړی اوسیدونکو به دغلو دانو په‌برخه‌کی دمصری کروندګرو څخـــه د دوی‌د حاصلاتو د غوښتنی لاس وراوږداوه اوتل به‌یی د مصر د غنمو اودانــــو څخه ډوډی تهیه کوله .

پدی وخت کی په‌نړی کی چپــلــه چین اونیل نوری لویی پاچهی نه‌وی، مؤرخان عقیده څرګندوی چی دری‌زره پنځه سوه کاله د میلاد دمخه مصرد دونه جاه ، جلال او ثروت خښتــن ؤچی مثال یی نه ؤ ددی بډایی‌په‌وجه به‌یی عالیشانه جشنونه او اخترونه جوړول . ددی جملې څخه یوهم‌دغنمو جشن ؤچی هر کال یی مراسم‌دفرعون په‌مخکی اجرا کیده ددی جشن دپاره‌به دمصر یوه زړه وړونکی او ډیره ښکلي نجلي دنیل وقرباني ته ټاکلي کیده مصریان پدی عقیده ؤ چه‌دنیل رودپر ښکلو نجونو مین دی اود دوی سره دواده هوس لري ،نوبه هر کال‌دنیل ددلتا څخه ترسو ډان پوری‌د کلیواو ښارو ښایستي نجوني راټولیدی‌بیا به‌د منفیس ښار ته لیږلي کیدلــی هلته به دمصر راهبان او کاهنـــان سره یو ځای شوی ؤ اود څــوزرو خوانانو او ښکلو نجونو له جملــی څخه به‌یی یوه نجلي چی ډیره بـــه ښایسته وه وټاکله داوخت به‌یــی‌د خاصو مراسمو په ترڅ کی د فرعون په‌حضور کی د قرباني په توګه‌دنیل رود ته ورواچوله .

یوکال دداسی مرا سمو په ترڅ‌کی دیوی پیغلی روڼ راورسیدی دایــوه داسی پیغله وه چه ښی توری سترګی پاسته وینښتان، سپین نری‌غاښونه اوګلابی مخ یی ؤدادونه ښکلی وه‌چی په‌یو وار کتلو به‌یی زړه‌دچا په‌سینه آدام نه پریښاوه ، عمر یی‌داتلس کلوپه شاو خوا کی‌ؤ ډیر موزون‌قد اوخاصه‌دلربایی‌یی درلوده دا نجلي ؤقرباني ته آماده شوه، او دمراسمو ومحل ته راوستل شوه . نجلي‌بـــه ددغو مراسمو په ورځ کله کله دواړه ښایستي سترګی پټی کړی داســی ګمان کیدی چی‌یوه نخښه په فکر کی لري.

دبلي خوا دمصر خلکو فعالیـــت پیل کړی ؤ چی ځینو به‌په مراسمو کی‌فعاله برخه درلوده او ځینو خاص دشکر د اداینی په لحاظ ګډون‌کاوه.

نو نجلي یی دنیل رود وراچولوته آماده کړه څو پدی توګه شکرپرځای کی.

هغه ګړی راورسیدی چی دا ډیره ځوانه پاتیاس نومی نجلي دنیـــل وبډاسکو ته ور واچول شــــی‌د نوموړی رود پر ټاکلي ځای یوه‌لویه خیمه و درول شوه دفرعون دپــاره مخصوص تخت راوړل شو اوپه‌خیمه کی دننه کښیښول شو دمصرخلك چی‌ددی ځای پر خوا راروان وه‌وار په‌وار یی شمیر زیاتیدی څو دفرعون ګاډی پداسی حال کی چی دده‌وسله والو ځوانانو ساتونکو احاطه کړی وه‌د مراسمو و محل ته راورسیــده ګاډی‌د خیمی ومخ ته ودریده فرعون راووت او په خیمه کی پر خپل تخت کښینوست ، کاهنان او راهبان وزــ وړاندی شوه د مراسمو اجازه یــــی وغوښتله دفرعون د اجازی وروسته یوه‌کجاوه چی څو تنو غلامانو پراوږو را اخستی وه دجشن ډګر ته راوړل شوه یوه ښکلي ښځه کجاوی تــــه ورغله اود کجا وی څخه یی یو ښس ایسته کی هغه و قرباني ته‌تیاره‌شوی نجلي یی د کجاوی څخه راوایستلــه پیغله پاتیاس په مات زړه‌او مغمومه

ښه‌له کجاوی راووته او مراسمو تــه آماده شوه ، پداسی حال کی چی‌په زرګونو سترګی ددی و څواته متوجه وی دښکلي پاتیاس څخه یی کمیس وکیښ او سپین بدن یی ور لوڅ کی. دخلکو زوږ پورته شو دځوان‌فرعون هم‌سترګی په نجلي کی وی ډیر متاثر شو هیڅ یی زړه‌نه غوښتل چه‌دانجلي اوبوته ور واچول شی څو واره‌یــی نیت وکی چی مراسم وځنډوی څوچه دراهبانو او کاهنانو جدی وضعی‌ته به‌یی وکتل نوبه بیرته پښیمانه شو پدی وخت کی دوه غښتلي غلامان‌راــ دمخه شوه او قرباني ته آماده نجلي یی‌تر لاسو ونیوله او په کښتی کی‌یی کښینو لەد معمو ل سره سم یــی‌د مراسمو سرود وږغاوه او کښتی‌یی په‌رود کی رهی کړه کښتی چه درود مینځ ته ورسیدله د نجلي تربغلویی لاسونه ور لاندی کړه اود رود باډاــ سکوته‌یی‌ور وغور څوله‌پدی وخت کی ډیرو خلکو مخونه ګرځولي‌ؤ چه‌نجلي پداسی حال کی چی دمرګ ولورتــه لیږل کیږی ونه وینی باید وویــل شی چی د کښتی وظیفه پردغه‌ځای‌نه بشپړه کیده او په رود کی‌یی نجلي پسی ځارل نجلي چه یوه ماهره‌اوبازه وه په خورا ماهرانه توګه یی پــــه اوبازی ځان د کښتی څخه لیری‌کی څه‌آن وروسته د کښتی چلونکــی‌دا څرګنده کړه چی نجلي ورکه شوه‌او وی‌ویل چی مړی یا ژوندی موبی‌ونه لیدی هغو کاهنانو چی د مراسمــــو مشرتیایی درلوده و هغو غلامانوتــه چی‌هغه هم اوبازان ؤ لاربښوونه‌وکړه چی‌دنجلي درك‌دی معلوم کړی. څــو ددوی تلاښ هم ناکامه شو .

نجلي چه‌په اوبو کی ډیره فاصله وهلي وه پداسی حال کی چه یوټوکر یی‌دځان سره پټ وړی ؤهغه‌یی‌پــــر ځان پیچلي او له اوبو څخه راختلي وه، دیوی ګاډی په توسط یی ځان‌یو ځای ته رسولي ؤ داپه ډیرو کلوکی یوه‌پلاوه چه‌یوه قرباني شوی نجلي‌به اوبوکی ورکه شی نو کاهنان‌وفرعون نه ورغله‌او فرمان یی ځیـــــــــنی واخست، چه‌په نجلي پسی یو لــوی تــلاښ پیل شی ، فرعون که څه‌هم

نور په (٣٤) مخکی

دپو هاند فاضل لیکنه

دع، تلخیص او ژباړه

# غیر لازمي بیري او ډولونه یې

تحلیلي روانشنا سان په اتفاق سر وايي چې ناحقې بیرهدواقعیتونو، مصدلو نو او سا لمو صحنو څخــــه وهمي تیښته ده ، دغه ډول بیري لــه اصلي پیښو او پدیدو سره هیڅرقم مناسبت نه لري مثلا لکه ځینيخلك چيله لوړه ځایه ، توري دز بیلي،له حیواناتو او نورو بی تاوانو پیښــو څخه بیریږي.

ددغو غیر لازمي بیرومهم علتله راډول پدیدو او شیانو څخه تیښته اوپرهیز دی .

دکلونو کلونو راهیسي د ناحقې بیري اصطلاح دهغو پدیدو اوپیښو څخه د پرهیز مفهوم چې اصلا دهغو له عواقبو څخه خبر نهیو، ځان تــه اختیار کړی دی چې په عمومي‌صورت سره دغه ډول پیښې مصؤنې اولــه خطره بچه وي .

دیوه طوفاني دریاب څخهپرپنــه باندی چې دوارو خواو تهیيداوسیني کنهاري دی تیریدل ، په طیاره کښې سفر، دیوسلو څوم منزل پربامدریدل اودغه ډول نور مثلونه چې اصــلا هیڅ خطر له هغه څخه نهشي تصور کیدای اما سړي په څپه لدی ډول پیښو څخه بې ځایه بیرته په لوح ضمیر کې ځای ورکړی وي .

دبې ځایه بیري د کلمې یوناني مفهوم هم پر هغو شیانو او صحنو باندی دلالت کوي کوم چې لههغــو څخه باید بیره وهم ونهشي چهمثال بيدمخه ذکر شو.

اما مهمه داده چې ددې ډولبیرو دتشکیل شکل اود هغو علاج بایــد بیان کړل شي .

ددې ډول بیرو ښه علاج همهغه دحقیقت کشف اود واقعیت درك‌کول دی چې د غیر طبیعي او تحلیلــی روانشنا سي دمطالعې دمهمــواو لاز مو مو ضو عا تــو څخه شمیرل کیږي دغیر طبیعي روانشنا ســـی تراکثر و مو ضو عاتو بې ځایهبیري ډیري رواج دی لکه څنګه چېپــه انګلستان کې د مطالعې څخهمعلومه شوې ده چېپه زرو نفرو کیاوهاویا نفر هپه همدې مرض اخته دیدغو بیرو له جملې څخه ځینې دونهخطر- ناکه دي چې سړی يې دعلاج لهپاره هغه وکړی لکه دموږکه اویا چونګښي څخه بیره . چې اصلا لدی ډول‌شیانو سره سړی لږ مخامخ کیږي نولــه همدې کبله دی ډول بیری تهچنداني ډیر اهمیت نه ورکول کیږي‌امادعلاج هغه اصلي لار یې همهغه تماس‌او- ارتباط دی دهغو شیانو سره کومچه انسان له هغه څخه بیریږي اوهغه حقیقت کشف وي چې اصلا بایدلــه هغو شیانو او

بدیدو څخه وهم ونه سي.

اولین سړی چې دغیر لازمــی بیري دحادثې به کشف مو فق سو (فرو ئید)و دهپه ۱۹۵۹م کال کــی یو پنځه کلن هلك چې (هنز)نومیدی ارمطا لعی لاندی ونیوی هغه کوچني له آسه دونه بیریدی چيواس‌ته د تللو توان يې نه در لود له همــدی بیري به له کورهنه راوتیدهددیپیښې علت لهرواني نظره دا ډول تحلیل کړ چه له آسه څخه ددی هلك بیره دپلار دبیری داانعکا س اوانتقا لــه څخه سر چینه اخلي دتحلیلي روان شناسا نودنظر یا تو پر بناء دغهډول بې ځایه بیرهزده کیږي او دهغــه دزده کړی منبع والدین ، وورونــه خو ندی اوبا لاخره همزو لی دی.

همدا راز دغه بیره دمشرو طــه انعکا س دزده کړی دنظري لاری هم دخلکو په ضمیر او نهاد کـــیوده اوبراختیا کوي لید لی به مو ویچه ځنې ځوانان دیوی ترا فیکي پیښــی لهلیدلو څخه وروسته نه یوا زيداچې لهموټر چلولو څخه لاس اخلي بلکه لهموټر کې له سپریدو څخه یې لاهم بدراځي.

یوه کیسه ده چې وايي یو هلك دیوه دکان دبغله تیریدی اویو څــه جنغوزي یې له کپې څخه پورته کړل خو دکا ندار ورو ستهپه پوه سوبله ورځ چې هغه هلك بیاراغی او غو- ښتل یې چېپه جنغو زیو مــټ ډك کړي دکاندار دشا دخوا تر مغــزی ټینګ کړ اوداسې لت یې ور کــړ چې بیځي بېسدهسوکلهچې پرسد راغی نو خورا وشر میدی او کورته ولاړی ،شرم دونه غلبه پر وکړهچې بیاد چاپر مخ نسوای ور تلای اوډیر لږ به لهکوره راوتی او چیری چیبه یې خلك تهول سره ولیدل هغه څپله کیسه بهیې ور بیاد سوه او لهبیری بهیې اندا مو نه پهلړ زیدو سوه او دفعتا به یېله هغه ځایه ځان ګو ښه کاوه.

تحلیلي روانشنا سي او امو زشي مسایل دواړه په اتفاق نظر دغیــر لازمي بیرو ریښې بهمحیط کې څیړي پهزبښتیا هم بې موردی بیري اواکثره عصبي بې نظمي زده کیږي اما سوال پهدی کې دی چې ولې ځنې خلك غیر لازمي بیری چې لهوا قعیت څخـــه لیری دی زده کوي او ځینې نور یـــی ییا نه زده کوي؟

معلو مداره دمخه تر دی چې سړی دیله داډول صحنو سره مخا مخ‌سي رقم په رقم فشارو نه پر وارد سوی وياود بې موردی بیري وانکشا ف

لطفا پاڼه واړوی



# غیر لازمی بیری...

ته زمینه برابره سوی وی نو هغه دی چې بدی ډول بیری اخته کیږی او هغه خلك چی ددغه رقم رو حی‌فشار لاندی نه وی را غلی نو له هری‌نا- معقو لی پدیدی اوحاد ثی څخه نـه بیریږی او ددغه ډول حاد ثو دتجزیی اوتحلیل عقلی قوت لری او کو لای سی چی حادثو اوحقایقو ته دی الـه واقعیتو سره سر ورکړی او دوخت تر مخه پریشانه اوډارن نه‌وی دغیر واقعی صحنو څخه دبیری یو بل‌علت ډیر ژر داعصابو دتعادل بر همیدل دی. پر هغو کسا نو چی اعصا ب‌یی ژرتر ژره خرا بیږی رقم په رقـــم انگیزی ډیر ژر تاثیر کوی او تـــر نورو زیات له غیر وا قعی صحنوڅخه دبیری‌رو حیه وده پکښی کوی اوبیله ئی‌چی په علت یی‌و ډو هیږی لـــه غیر وا قعی صحنو څخه بیر یږی‌او هغه خلك چی ژرنه عصبی کیږی او کوچنی حاد ثی تاثیر نه‌پر کوی‌هغه له‌دی ډول غیر وا قعی پیښو څخه‌نه بیریږی پس دمغز سا ختمان دبـــی ځایه بیری په انکشا ف کی ډیـــر ستر رول لوبوی چی‌د هغه‌بحث خبره اوږده وی او له دی خاطره نود بیری عامت ته‌ارثی جنبه ور کوی ځنگـــه چی ددغه ډول بیرو علاج فقط اوفقط له‌دغو رقمو صحنو او پدیدو ســـره مستقیم تماس دی‌څوداصلی واقعیتو اوواقعی صحنو ترمنځ په منطقی‌او مستدل ډول مطا بقت منځ ته‌راسی.

دځوان نسل وظیفه‌ده چه داعصابو کنترول یی په لاس او ژر خوا بدی نه‌سی.

افغا نی ځوانان باید متین اودقوی اعصا بو خاوندان وی او ژر بی‌خوده نه‌سی، اوبی ځایه بیرو ته اجا زه ورنه کی چی عادت یی سی ، پیښـــی باید په‌واقعی ډول وسنجوی او بیا تصمیم ونیسی.

تراوسه‌مود بی ځایه او غیر لازمی بیرو په باب په لنډ ډول یو څه‌بحث وکړاوس یی‌د صحنو او پدیدو ډولو نه په‌جلا جلا توگه معر فی کوو اما باید وویل سی‌چه‌د کرداری ښوونځی بیروان دیوه کو چنی حیوان څخه‌د بیری اودیوه بی روح شی څخـه‌د بیری ترمنځ فرق ته چندا نی نـــه قایلیږی ځکه نود غیر لازمی بیـــری محتو یات اود هغه اصلی مو قـــف یی‌په نظر یو ډول دی.

پس‌د کرداری ښوونځی پیر وا ن لکه (ویلسن) او (اویسن) د هغـــه دجوړ ښت پر ځای دبیری وعملـــی وضعی ته ار زښ ور کوی البتـــه وهیږو چی دسلوك او کردار وضعی اوشکل اصلی تشخیص دبی ځا یـــه بیرو په‌سا ختمان پو ری اړه لری. دکرداری ښو نځی درو ش پر اساس له‌ماره‌اویوه لوړځایه څخه‌بیره‌چی‌دوه مختلف شیان دی یو ډول ده دهغوی په‌نظر بیری له دغه ډول صحنوڅخه نولـه یورقم دی او دانسان په ضمیر کی‌په غیر شعوری ډول ځای اشغا- لوی مار کس چی یوغیر طبیعی روان شناس دی‌په ۱۹۶۹ کال کی یی د- کرداری ښوونځی دبیر وانو پـــه خلاف یی بی‌ځایه بیری په مختلفـو ډولو وویشل ده دصحنو او پدیـدو ترمنځ هغه مهم فرقو نه لکه دبعضی شیانو څخه ډیره بیره د جنسیـــت تاثیر په‌بیرو کی په‌یوه معین ســـن کی دبیرو انکشا ف اونور روښانـــه کړل.

او س په لنډ ډول د حیوا نا تـــو څخه ،دکوږ ددبا ندی څخه، دغونډو اوستیجو څخه‌د بی ځا یـــه بیرو څیړ نه وکړو.

له حیواناتو څخه بیره دونه سخته نده‌دلازمو تحقیقا توپه اثر معلو مـــه سوی ه‌چی له حیواناتو څخه ډیـــر بیریږی اودغه بیره یی دکو چنیوالی څخه په ضمیر کی ځای سوی وی.

البته په کو چنیـــوا لی کی هلکان اونجونی دواړه له حیوا ناتو څخـــه وبی ځایه بیری ته په ځان کی ځای ورکوی اما هلکان چی ځوانان شـــی داجتماع دفشار له‌کبله هغه په دوی کی له منځه ځی امایه نجونو کی‌پاته کیږی اوله همدی کبله دغـــه ډول بیری په ښځو کی ډیری لیدل کیږی اوهمدغه رنگه ښځی نسبت ونارینو ته‌ژر خوابدی کیږی اوْدغه ځای‌دی چی ودغه ډول بیرو ته دښځو لوح ضمیر ډیر اماده وی.

دکورله دباندی څخه بیر یدل دآزادی هوااو پرا خو میدانو څخه شروع‌او په‌څو نورو پدیدو لکه سودا کولو- بازار گردی ،داجتماعاتو سره مخامخ کیدل او شفر کولوبا نـــدی ختمیږی دروانی مریضا نوله جملی څخه یـــو نفررا پور ورکوی‌چی دغه ډول‌بیری سړی ډیر نارا حته کوی. په رښتیا هم له کوره څخه دباندی نه وتـــــل انسان څونه په قید کوی.

دغه ډول بیری ډیری رواج لری‌او مثالونه یی ډیر په‌رواني کلینیکوکی لیدل کیږی لکه څنگه چی په‌امریکا کی‌په سل کی ٦۰ اتکل سوی دی.. احصا ئیو ښو دلی ده‌چی له دباندی وتلو څخه ښځی ډیری بیریږی هغوی دادول بیرو ته له ځوا نی اویاد کو- چنیوالی له‌اولو وختو څخه په فکر کی‌ځای ورکړی اوانکشا ف ور کوی اوددی ډول بیرو منشاء بیا هم‌ذهنی اختلا لات تشویشو نه او غمگینـــی ښودل‌سویدی.

غیر لازمی اجتما عی بیری دهغـــو بیرو مجمو عه ده‌چی دانسانانو لـــه لیدلواو کتلو تماس څخه منځ تـــه راغلی وی الکه دنورو په مخ کی‌دډوډی خوړلو بیره یاد نورو په مخکی‌لـــه خبری کولو او یابل هر اجتما عـــی فعالیت چی خلك یی ما نع تصـــور شی اوتشویش خلقوی حال دا چی هغه یی‌وا قعی اواصلی مانع نه وی‌او ددی وړنه وی چی سړی دی چر ت په‌خراب کی که څه هم دغـــه ډول اجتماعی بیری ډیری باب دی اوبیاهم داحصا ییو له مخی دښځو تعـداد نسبت دنارینو ته چی په دی بیرو مبتلا دی ډیر دی دغه ډول بیری‌د- ځوانی په‌اولو کی دلویو اجتما عاتو اومجلسو کی‌له گډون څخه پیداکیږی. ددغه بیرو مهم خصو صیت دا دی چی دنوی نسل دتشدو شا تو او بی جرآتی درجه په اجتماعی صحنو کی ډیره لوړه بیایی علت یی هم همغـــه داجتما عی رشد او اجتما عی کولو دغلطو طریقو اوپر نسیپو څخـــه استفاده کول دی.

همد غه رنگه‌گا هی وختی غیرلازمی بیری له‌نورو شیانو لکه له لوړه‌ځایه ،بریښنا ،تندبارانه ،تا ریکی، سفر تنگو ځایو، مو ټرچلولو ،روانو اوبو اونورو څخه هم پیدا کیږی چی‌پردی ټولو بحث کول ډیر وخت غوا ړی امابیا هم دنمو نی، په ډول دستیج څخه بیره دویونکو دمعلو مات لپاره په‌لنډ ډول معر فی کوو.

لکه څنگه چی پو هیږی کله چی‌په صنف اویاپه ټولنو کی ودریږو پـــه موږاو تاسو کی بیله دی چی په‌علت یی وپو هیږو زړه‌مو په دربیدو شی سایکالو چستان دصحنو او ستیـــج څخه دبیری علت داجتما عی کولـــو طریقی اونجر بو پوری مر بوطبو لی دمخنی او وروستنی کردار یی هـــم دعلتو په قطار کی راو لی.

دصحنو او ستیج څخه بیـــره‌د شخصیت درشد ،امتثال دمشرا نو په‌پیروی او تقلید پوری مربوطبولی چی‌بدغه ډول ځوان داوریدو نکو په مقابل کی حسا سیت ته انکشا ف ورکوی.

(الن پای ویو) دخپلو معلو ما تـــو په‌پوره کولو کی ددی په باب چـــی‌د صحنو او ستیج څخه‌د بیری یوازنی علت داوریدو نکو سره حسا سیت دی، ډیر مخطا طانه بر خور د کـــوی اوهغه یی‌په مطلق ډول یوا زنی علت نه‌ترا شی.

هغه‌د خپلو مطا لعا تو په‌وسیله ددی ډول‌بیروعلت‌دځوانانو داجتماعی کولو اودوالدینو په‌رویی پوری تړی. دی ددی ډول تحقیق په نتیجه کی‌چی دوالدینو درو یی په‌باب یی خا ص سوالو نه ترتیب کړی وه وپور تـــه نتیجی ته‌ور سید دی دوا لدینـــو په وسیله دتربیه کولو دطریقو دمقا- یسی په وسیله هم دغی نتیجی تـــه ورجذب کړ اووپو هیدی چی کـــه والدین دکو چنی ار زښتنا که کارو اوابتکار ته په‌درنه ستر گه وگوری‌او هغه تشویق کړی‌اوددغه ډول‌اجتماعی کولو طریقی تقویه کړی نو له دغـــو ځوانانو څخه ډیر لږ پیدا کیږی‌چی‌له ستیج او صحنی څخه دی وبیریږی امابا العکس هغه کو چنیا ن چی‌هر وخت تحقیر او تهدید کیږی ،دغـــه ډول بیری دهغو په ضمیر کی ډیـــر ژرزیښنی ځغلوی.

پس له ستیج اواجتماعاتو څخـــه دځوانانو بیره په دوو لاندی مهمـــو شیانو پوری اړه لری :

اول- دوالدینو له خوا داجتما عی کیدو دطریقو هغه اصلی ارزښ یا بی نه‌کیدل یعنی که وا لدین د خپـــل کوچنی‌څخه داسی تو قع ولری چه سل په سل کی دی دا ډول هلك‌او یانجلی واوسی لکه ځان چی وینی او هیڅ ډول سهوه دی نه کوی یوه‌لویه خطابه یی کړی وی.

چی دا پخپله له امکان لیری کـــار اوتش لیو نتوب دی، یعنی دا چی‌د والدینو دتو قع سطح دکو چنیا نـــو اوځوانانو د توا ن او طا قت‌سره‌هیڅ ډول تناسب نه سی بر قرار ولای اوغوا ړی چی هغوی بیله سنجشه

نور په ۳٦ مخکی

# تکړه ربابی بلبل شاه

## زموږ پوښتنو ته جوابونه را کوی

ــ یی چی ډیر خله‌به مو دبلبل‌شاه درباب غږ اوریدلی او په زړه پوری نغمی ئې‌راډیو څخه اوریدلی وی، داهم ځکه چی ده‌نه یوازی دخپل رباب په وسیله دپښتو محلی موسیقیو ځو ځو نغمی په راډیو کی ثبتی کړی بلکی په سلګاو نورو سندرو اونغمو کی‌یی هم دخپل رباب ږغو لو سره برخه اخستی ده.

دی چی په‌ونه جګ اود تکړه مټو اوغړو خښتن دی، نژدی ۳۸ کاله عمر لری.



**ښاغلی بلبل شاه**

که‌څه هم چی بلبل شاه یــو خو شخو یه او خنده رو یه سړی دی اوکله هم نه غواړی چی خپل تندی ته‌ګڼ نخی ورکی خو ددی سره سره کله چی می داوار ولید نورا ته ثابته شوه چی دده ساد ګی اوساده ژوند زیات خو ښیږی ځکه لایی هم هغه عامیانه جامی یی اغو ستی وی.

چی زه یی ولیدم نو ډیر خو ښ‌شو او په منډه‌یی ځان راورسا وه او له تاوده‌روغبړ څخه‌وروسته یی‌دکښیناستلو تعارف وکړ نو می ور ته وویل:

ــ بلبل شاه وروره! څنګه دادوه‌دری واره می ددیری په مجلس کی ستا نوم‌وانه وریدی ،لکه چی په دی‌وختو کی دی پرو ګرام سره همکا ری پری ایښی ده؟

بلبل شا هچی خوله یی‌دخنداډکه ویی ویل:

ــ نه‌یاره! خبره خو داسی ده چی‌د دیری دمجلس پرو ګرام زیا تره‌هغو هنر مندانو ته چی دهیواد له بیلا کسب پری نښود او تر کا نی می‌هم

بیلو سیمو څخه را ځی دساز آواز وخت ور کوی نو محلی هنر مندان که ښځیله رباب وغږ وی او یا یی ربابی دخانه سره راوړی وی نو زه هغه ته موقع ور کوم چی په راډیو کی دسندرو او نغمو په ترڅ کی‌رباب ورغوی دا هم ځکه چی فکر کوم‌زموږ راډیو دټول ولس شریک مال دی او هغه شان چی زموږ ټول خلك یی‌له بیلا بیلو پرو ګرا مو نو څخه استفاده کوی نو محلی هنر مندانو ته هم‌باید داحق ور کړل شی چی خپل هنری سو غا تونه له دی لاری دخلکو غوږو نو ته ورسوی.

وروسته تر دی خبرو می ورتــه وویل

ــ ښتیا هغه بله بلا چی می یــوه مرکه در سره کړی وه نودا سوال دراځخه هیر شوی وچی دڅرباب لــه ږغو لو سره دی په یوه کا ریګری کوزنی کی څنګه شوق پیدا شو؟

بلبل شاه‌وویل: دملت، دنما یند ګانو

ــ خبره خودا سی وه آشنا چــی کله زه‌نوی دخوا نی‌در شل ته‌رسیدلی وم‌نو می دسندرو د ویلو سره زیاته مینه پیدا شوه، نو هغه وَ چی ډیر کلونه چی طالب وم اوبیا می له‌خپل مرحوم پلار ملنګ‌شاه سره په‌دوکان کی‌تر کانی کوله نوکله نا کله چی به‌می یوه ګړی وخت او خالی مساعد ولیدنو بس ناره به می او چتو له‌او سندری می ویلی خو وروسته دی نتیجی ته ور سیدم چی که له‌سندرو سره څوك دمو سیقی کومه آله هم ورغوی نودا به لاهم پسی په زړه پوری شی نو په دی وجه می پــــه دکان کی له تختو او سیمو نو څخه خانته یو رباب ډوله ساز جوړ کړاو کله چی می سند ری ویلی نوداریاب به‌می هم تر نګاوه څو چی په دی‌توګه می رباب زده شو.

خو ددی سره می هم خپل اصلی کوله خو چی کابل ته را غلم اوله ۱۳۴۷ کال را هیسی می له را ډیو سره‌د همکاری دپاره قرار داد وکړ.

خو ددی دپاره چی وکړای شم رباب دهغه له ټولو معیا ری‌موازینو سره زده کړم نو له ۱۳۴۸ کــال را هیسی درا ډیو له بیا وړی رباب ږغونکی استاد محمد عمر سره‌شاګرد شوم اودادی تر او سه له را ډیو سره همکاری لرم. تر دی ورو سته می ورته وویل:

ــ په دی وروستیو وختو کی دی دکو مو غوره اود یا دو تــــې وړ پرو ګرا مو نو کی بر خه اخیستی‌ده اوکه نه؟

بلبل شاه پــــــه خندا وایــی

ــ هو هو ولی نه !... په دا سی پرو ګرامو نو کی می بر خه اخیستی چی نه یوازی دیادونی وړدی بلکــه زما دپاره دویاړ نی وړ هم ښکا ری تیر کال کله چی په کا بل کی دلویی جرګی غونډی جوړی شوی نود راډیو په تالار کی ددوی په ویاړ یو کنسرت اجرا شو چی ما په دی پرو ګرام کی رباب وغږاوه او ددی کنسرت زیات هر کلی وشو.

سر بیره پر دی کله چی دانتر‌ــ کانتی ننتال په هو ټل کی دګــران هیواد دنوی جمهور رئیس دټا کنی په‌ویاړ میلمستیا شوی وه نو یوبل کنسرت اجراء شو چی‌په‌دی کنسرت کی‌هم ما بر خه لرله اود حا ضرینو له‌زیا تو او تودو هر کلیو ســـره وویاړل شو تر دی وروسته می‌بلبل شاه ته وویل:

ــ ښه نو... پدی توګه او س‌پوره هنر مند یی ها؟ خودا وار بلبل شاه په‌لږ جدی ښه وویل:

ــ نه‌نه ..دمو سیقی نړی ډیــره پراخه ده هسی چی انسا ن نشــی کولای پری پو ره مسلط شی، سر بیره پر دی زه په دی‌هخه کی یم چی دمو سیقی او خصو صا د ربابد زیا تی زده کړی دپاره تر دی زیا تی اوږدا ځی هلی ځلی وکړم چی په دی اړه کی دتیر کال له بیل څخه نراوسه پوری مایو کورس هم تعقیب کړی اوبیاد تمامه تر لاسه کړم.

بلبل شاه چی دقتا عت به ټولو سره له ژوند‌ه‌راضی انسان دی‌دیوی بلی پوښتنی په ځواب کی یی درباب په‌هکله وویل:

ــ البته درباب داصلی ټاټوبــی خبره دټا مل وړ بر ښیښی ځکه ځینی وایی چی دمو سیقی دایه زړه‌پوری آله دهندو ستا ن په کشمیر کی‌منځ ته‌را غلی ده او بیا وروو روزموږ هیواد ته راوړل شوی ده اوزموږ په موسیقی کی یی دود مو ند لی دی، ددی تر څنګه دانظر یه هم مو جوده ده چی رباب لکه دکلا سیکی موسیقی ځینی نوری آلی زموږ په هیواد کی منځ‌ته را غلی اود همدی غزنی او سمسور هیواد په ګوټ ګو ټ کښی خپور شوی او په ولسی سو یه یی ودده مو ند لی اوپه دی تو ګه دادی زموږ لاس ته را رسید لی دی.

چی البته زما په فکر دا دو همه‌نظریه سمه بر ښیښی ځکه رباب دمو سیقی

**نور په ۳۹ مخکی**



**دهیواد تکړه ربابی ښاغلی بلبل شاه درباب ږغولو په حال کی**

ژباړونکې: ستاره امیني

# دغذایي رژیم دنیونکو

## دپاملرنې وړ

**هغه کسان چې د خپل وزن دکمیدو په‌خاطر قصدا دځینو غذا یي موادو دخوړلو څخه ځانونه محروم سا تي په حقیقت کې خپله سلامتیااوداندام ښکلا په‌خطر کې اچوي.**

نن ورځ ځینې میرمنې او ځینې نرینه داسې سخت غذا یي رژیم تعقیبوي چې په‌هغه سره خپله‌طبیعي ښکلا او سلامتیا دلاسه ورکوي. ښځې دسالم بدن اود بدن دغړو د ښکلا په خاطر وبوه متعادل غذا یي پروګرام ته اړتیا لري ټوله غذا یي مواد لکه پروتیني مواد کاربو هایدریتونه، غوړي ویټا مینونه، کاني مواد او حتی او به هم‌په سلامتیا اوعضلاتو په ښکلا کې مهم رول لري داسې نسې کمدای چې د دغو موادو څخه سترګې پټې‌او نورمواد هغه پر ځای مصرف کړو ویټا مینو نه په‌خپل‌ټول‌اهمیت‌سره نسې‌کولای هغه انرژي چې کار بوهید رایتونه قندي او نشا یستوي مواد یې تولیدوي په بدن کې پیدا کړي هیڅ مواد دیرو تیني موادو په‌اندازه دبدن پر غړو اثر نه کوي حتی‌غوړین مواد چې د چا غوالي مهم عا مل ګڼل کیږي ښځې نسو کولای چې هغه دغذایي پروګرام څخه وباسو غوړي د،آ، ،ای او،ک، ویټا مینو نه لري چې دبدن دودې دپاره لازم دي.

ددې ټولو غذایي موادو دډلې څخه هغه څه چې‌ډیر درژیم‌نیوونکو دکرکې سبب کیږي کاربوهاید را یتونه قند او نشا یستوي مواد) دي هغه کسان چې دچا غوالي‌په‌باره‌کې‌معلومات نه لري هغوی‌دا نظر په ور کړي ده‌چې کاربو هاید رایتونه یوازې چا غوالی منځ‌ته راولي او نور هیڅ‌خاصیت نه لري مګر په حقیقت کې دا سې نده دانسان دبدن دسلا متیا دپاره باید حتما ځینې کاربو هاید رایتو نه مصرف شي او با ید داولیدل شي چې د کاربو هایدرا یتو کوم مواد ګټور دي اوداندام تناسب او ښکلا د چاغوالي څخه ژغوري.

دکار بو هاید رایتو پیژ ندو نکو کاربو هایدرا یتونه پردو بر خو تقسیم کړي دي چې‌یو یې ساده اوبل یې مرکب دي.

که‌څه هم دغه دواړه دقندو دماليکولونو څخه په‌لاس راځي مګرساده کاربو هاید را یتو نه دقندو عسلو او نورو خوږو موادو څخه چې دقندو کوچنې ماليکلونه لري جوړ شوي دي مرکب کاربو هایدرایتونه دوریجو، حبو با تو، نباتو میوو او سبزیجا تو دنسبتا غټو مالیکو لو څخه جوړ شوي دي ددغو دوو ډلو په‌منځ کې ډیر تو پیر دبدن دسلامتیا په‌نسبت مو جو دي کله چې موږ ساده کاربو هاید رایتو نه مصرف کړو په څو دقیقو کې ټوله قندي‌مواد تجزیه کیږي اود وینې جریان ته‌لاره پیداکوي مګر کله چې مر کب کاربوهایدرا یتونه مصرف کړو د هغو عت مالیکو لونه په څو سا عتو کې تجزیه کیږي او دقندو تر کیبا ت چې د انرژي درلودو نکي دي په هر سا عت کې په‌لږ اندازه وینو ته داخلیږي دمړ کبو کار بوهاید رایتو درلودو نکي غذایي مواد لکه سبزیجات او ځینې میوې دصحت دپاره ډیر ګټور دي اود چاغوا لي سبب هم نه ګرځي ساده‌کاربو هایدرایتونه لږ کالوري لري بر عکس مر کب کاربو هاید را یتونه ویټا مینو نه او کاني مواد ډیر لري.

نتیجه داسوه چې کاربو ها یدرایتونه نه‌یوازې داچې چا غوا لي منځ ته‌نه راوړي‌بلکه دبدن دپاره‌ډیر ګټور هم دي که د هغوی د مصرف څخه که ساده وي او که مرکب دبدن دوزن دلږوالي په خاطر ځان وژغورل شي کسا لت اونارو غي منځ ته راوړي حتی دسبز یجا تو او میوو مصرف په بدن کې چې په قندو تبدیلیږي اودا ینې دضرورت دپاره ذخیره کیږي که مخنیوی وکړو بدن ډیر فر سوده او خرا بیږي څکه هغه کار بو ها ید را یتو نه چې‌دا ینه ورته اړه لري هغه لږ وي او په‌دې اساس ټوبه بدن کې کسا لت ،سر ګرځي ،عصبا نیت ،سر دردي اود شوګیانو وچوا لي منځ ته را ووړي په‌دې اسا س دامریکا دملي‌تحقیقاتو ټولنه ټولو خلکو ته داتو صیه کوي چې‌په ورځ کې ۴۰۰ کا لوري کاربوهایدرا یتونه مصرف‌کړي څنې‌غذایي پوهان پردې عقیده دي چې تر ۲۵۰ کالو ري پورې لاهم دکار بو هایدرایتو مصرف لږ ولای شو څو تر دغه مقدار لږ باید مصرف نه شي پرته صورت کې با ید دبدن د وزن دکموالي په سبب‌دځینو موادودخوړلو څخه مخنیوی او پخپله سلا متیالوبې ونه‌شي که غوا ړی چې بدن وزن‌مو او سلا متیا مو تامین شي او متناسب اندام ولري ټوله مواد لکه پروتیني ،کاربو هایدرایتي او غوړ مواد مصرف کړي مګر په لږه اندازه هره غذا باید په طبیعي ډول وخوړل شي دسور کړي شي دخوړلو څخه ډډه وکړي هره ورځ ورز ش او پلې تګ وکړي چې غذا یي مواد ستا سو په بدن کې وسو ځي او دواز کې په ډول ذخیره نشي چې چاغوا لي منځ ته راوړي.



دمنې دپاره داودل سوی کمیس‌یوه‌ښکلې نمونه چې دسلیقه لرو نکو میرمنو دپاره مو انتخاب کړې ده.

د لگیا ژباړه

# په واده د ډیرو ناروغیو علاج کیږی

دواده څخه مراد داولاد زیږیدنه‌او دکورنیو جوړیده دی چی داد بشریت دبقا یوازینی لاره ده ، نو دیوی‌تکړه ټولنی د جوړښت دپاره واده په‌زیاته بیا په نجونو کی پدی شرط چی‌دځان وړمیړه‌یی موندلی وی‌دمړانی( بلوغ) په‌لومړنیو وختو کی لازم دی ځکه‌چه ښځه د مړانی د وخت څخه بیاتـــر دیرشو کلو پوری‌د جنسی چارو دپاره مساعده وی نو وړده چی نجلی‌ته‌دا وخت میړه موندل شوی وی .

واده برسیره پر نورو ښیگڼـــو دښځودغه لاندنی ناروغی‌اوبی‌ترتیبی هم‌د مینځه وړی.

څوانه نجلی چی وینی یی لږوی، قاعده گی یی نامرتبه وی، ځینـــی نجونی چی په قاعده گی کی‌یودردهم لری، د هاضمی خرابوالی اود زړه‌ــ ربږدچی ور پیښی وی دا ټوله‌دمینځ، وړی، برسیره پردی د غدودو دننی ترشح ته هم سموالی راولی، تیان‌او تناسلی دستگاه وده هم کوی.

دواده سن د دوارو خواو دپاره‌چه ډیر موزون دی د نجلی دابه اتلـــس کاله اود ځوان دابه پنځه ویشت‌کاله یاددی کلونو په شاو خوا کی‌وی‌هغه نجونی چی نارینه یی غواړی اودوی ترډیرو نارینه‌و لاس اړوی ډیرځلـــه دمړوښی چانس دلاسه ورکوی یاداچی ښه چانس یی دلاسه وتلی وی‌اوهم چی‌ښځه تر پنځه ویشت کلنی‌واوړی دزیږولو په‌وخت کی دځه عذابو سره مخامخ کیږی، هغه نجونی چی‌میړه‌نا وخته کوی‌ډیر ځله بدخویه اوعصبانی مزاجه گرځی چه پس له واده هـــم‌دا خوی ورسره وی په نتیجه کی‌یی‌خپل اودمیړه ژوند ور تریخ کړی وی.

پـــه اروپایی یا داسی نورو مدنی ممالکو کی چه ښځو ته تامه آزادی شته هلته نجونی اکثره په ځنډواده کوی ځکه چی دوی همیشه د ځوانانو دمعاشرت څخه برخورداره وی چـــی پدی حساب د دوی دواده ځنــــډدا مشکلات له مینځه وړی وی خوپــــه داسی ممالکوکی لکه زمونږ نوداخبره پرځای ده چی نجلی دمړانی په‌سرکی واده شوی وی .

ځینی نجونی چی د مینی او محبت پرلار دنارینه‌سره واده کوی‌ټوله‌عمرد یوه خواږه ژوند سره مخامخ‌وی‌داسی چی‌نجلی د فکر او هوښی څښتنه‌وی‌د اولاد زیږیدنی او د کورنی جوړښت ته‌یی‌خاصه پاملرنی وی خو ځینـــی نجونی چی د واده په حقیقی‌مفهوم‌نه پوهیږی د مینی او عشق لاره‌یی‌نـــه وی درك كړی نود واده وروسته‌بیئه دی چی د ژوند وځینو مهمو خبرونه ته‌لکه دمیړه دزړه ساتنه ،دکورنـــی اداره او داسی نورو ته توجه‌ولـــری

ددی څخه ماورا فکر کوی او ځـــان ددی خبرو څخه بالکل آزاد کنی‌چی داهم په ژوند کی یوه لویه بی‌خوندی مینځ ته راوړی.

همداسی ځینی نارینه د مینـــی‌او محبت په چوکاټ کی‌د ژونـــــــدد سمون اود کورنی‌د جوړښت په‌خاطر واده کوی رښتیاهم په نړی کی‌کورنی دټولنی د واحد په توگه پیژندل‌شوی دی چی په‌یوه ولس کی د کورنیـــو دجوړښت څخه ټولنه جوړیږی نودا لاندی څو ټکی ددی جوړښت پـــه سمون کی لویه برخه لری .

اول ـــ‌د ښځی او نر دپاره‌دښه‌او گډژوند ایجاد چی دانفرادی ژوند‌په نسبت د ټولنیز ژوند خوایی ډیره‌وی.

دوهم‌ـ د منظمی جنسی غریـــزی تامین او ددی نقطـــه نظره ددباندنی فعالیت څخه ځان ساتل .

دریم‌ـ په دواړ سره دیوه داســـــی محل مهیا کیدل چی د ماشو مانـــود روزنی او پالنی شرایط پکی برابـــر شوی وی .

څلورم‌ـ دواړی خواوی بایــــدد جنسی روابطو په برخه کی پراخـــه پوهی ولری اود معاشقی دفن ســـره بلدیت ولری چی داهغه خبری دی‌ـ چی ددواړو خواو څخه په نظرکـــــی نیول شوی وی او ددی‌څخه پرته‌بله لاردښه ټولنی د جوړښت ضامــــن کیدای نشی (په ځینو ممالکو کی‌یو وخت داسی مؤسسی جوړی شوی‌چه دکورنیو د جوړیدو په عوض کی‌یـــی دښځی اونر دمعاشرت دپاره زمینـــه مساعده کړی وه) دښی نتیجی دنه ور کولو په نسبت په هیڅ وجه‌ددغه مروجه کورنیو ځای نشوای نیولای،

څرگنده خبره ده چه ښځه‌یوازی‌ددی دپاره نده چی فقط او فقط دنارینـــــه شهوانی تسکین په وشی لکه‌چی‌ومو ویل داولاد، کورنی بالاخره د ټولنی‌د مینځ ته راتلو سوال یی مهم‌دی.

ددی ټکو دپر ځای کیدو په صورت کی‌دنر او ښځی ترمینځ دیوه خواږه ژوند په اړخ کی ښی کورنی هـــــم تشکیلیږی چی داپه حقیقت کی‌دیوه نیکمرغه ژوند اساس دی .



درحيمي ژباړه

# تر ميړه مهربانه ليور

هغه شپه (گرهام) دډوډې خوړلو په سرخ کی ښيخي چپ ناست ؤ.داسي ښکاريده چي په يو شي کی يې چرت ښه‌دی تا ښيره دځا يه ولاړ سواوويې ويل :

ـ(دايان) بهتره ده چي ولاړه سی او د سفر اسباب را ټول کړی. سبا رخصتی شروع کيږی .

ـ(گرهام) د رخصتی څخه دی مراد څه دی ؟

ـما تصميم نيولی دی چي يو څه استراحت وکړم، نو فکر مي وکی چي بايد (برينډل سی) ته ولاړ سو .

ـمگر تاته معلومه نه ده چي زما رخصتی په راتلو نکی مياشت کی‌ده؟

ـښه، داخو مهمه نه ده د هغه ځايه به خپل رئيس ته يو ښکلی کارت زاوا ستوی اوورته وبه ليکی چي د رخصتی د تاريخ په باب دی خپل تصميم بدل کړی دی .

زما ميړه ته په کار کی د نظم رعايت هيڅ مفهوم نه‌د رلود او ښايی دغه‌دليل ؤ چي‌دی هيڅکله ديوه دايمی شغل قبولی ته‌نه حاضر يدی. نوما هم بانه ورته وکړه چي زه ددی سفر دپاره منا سب لباس نه لرم. خو ده داسی راته وويل :

ـکولای سی چي په (برينډل‌سی) کی يې رانيسی .

اوه گرانی ، ما فکر کاوه چي ته‌به زما د پيشنهاد په اوريدلو سره‌ډيری خوښی وزرونه وکړی. د هغه ښکلی سا حل پر غاړه چي لمر ته‌وغزيږو څرنه خوند به وکړی؟

ماد (گرهام) د غو ښتنی په‌مقابل کی هيڅکله د مقاومت توان‌نه درلودی په تيره بيا هغه وخت چي په غيږ کی به يې ونيولم او شونډی به‌يې زما پر شونډو کښيښنولی .

هغه شپه په پوره ډير تلوارد تالو اواسبابو په‌راټولولو لگيا سوم.

خو کله چي په داسبا په موټر کی کښينستم بيا په چرت کی ډوبه سوم ما يوډير ښه‌مهر بانه رئيس درلودی. خودا چي په خپل ناځاپی مسافرت سره مي دپلور نځی پرو گرام وز بر هموی نو ډيره خواشينی وم . او په عين حال کی د (گرهام) روش زما خواشينی دوه چنده کول. اوريځی ورځ .تياره کړی وه، يوه درنه ورځ وه.را تيگی بير وبار خورا ډيرو. (گرهام) پر له پسی نوړو چلو نکوته پوچو فحش ويل .

څه فايده ، مجبوره وم چي د هغه سره مي واده کړی وای ځکه‌د عشق له ناکامی مي ښه نه راتله . بيله‌هغو عشقی شيبو چي د(گرهام) په نوده عيږ کی به وم، پر ته له هغو لحظومی هر وخت دده د ناوړه چال چلند او ناځ بی بی دليلو درديدو څخه زړه، غو ښت چي چغی ووهم .

زه او (گرهام) شپږ ميا شتی د دغه کاله چي دی زما کور ته ديوه سفری بکس د خرڅلاؤ په نيت راغلی ؤ،يودبله آشنا سوو. زما نه زړه ، خوښنتی چي بکس را نيسم او نه مي‌د بکس د رانيولو پيسی درلودی .

هغه شپه د تنهايی غم ډيره غلبه راباندی کړی وه، ځکه مي ده ته‌ديوه گيلاس قهوی سيت وکی. ده هم شاو خوا وکتل او ويې ويل :

ـتاسی يوازی ژوند کوی؟

ور ته و مي ويل چي مور او پلار مي څو هفتی دمخه په يوه ترافيکی پيښه کی مړه سول‌اوزه هيله لرم چي دخو تنو همکارو نجونو څخه ديوځای هستيدو غو ښتنه وکړم .

په داسی حال کی چي فکر وړی‌ؤ ويې ويل :

ـبد فکر نه دی. خو سړی هيڅ وخت نشی کولای‌عاقبت د کار وسنجوی .

سبا شپه بيا (گرهام) کور ته‌راغی او زما څخه يې غو ښتنه وکړه چي نځا ته سره ولاړ سو. زه لو مړی‌په دوو زړو کی وم چي ور سره ولاړه سم کنه .

خو ده ډير ژر په خپله غوړه ژبه زه راضی کړم. تر هفتو هفتو تنهايی ورو سته يو وار بيا د ژوند سا زما په وجود کی وچوڼيده .

تر هغه وروسته‌موږ د و د بله پر له پسی سره ليدل. لږ ورځی‌لانه وی تيری سوی حس مي کړه چي د (گرهام )دعشق‌په لومه ښه‌ سوی‌يم.

دوی هفتی وروسته يې راته‌وويل:

ـگرانی (دايان) دغه ستا پرما پيرزو ده چي زه په هغه تنگ قفس کی ژوند وکړم او ته په دغسی ښکلی پارتمان کی يوازی ؤ اوسيږی؟

موږ کولای سو دواړه يو ځای‌و او سو .

ـ نه ... (گرهام)دا ښه‌کار نه‌دی.

ـښه ...که دا صحيح کار نه وی او ته خو شا ليږی نو لومړی به‌واده سره وکړو او بيا ....

په لومړيو هفتو کی زما او دده ژوند ډير ښه تيريدی خو ورو سته کرار کرار د (گرهام) د حقيقی‌زشتی څېرې سره آشنا سوم. ډيرژر عصبی کيدی ، او کله کله به بی موجبه د کوره وتی او تر ناو خته به کورته‌نه راتلی .

هر ډول چي ؤ نيت مي کړی ؤچي دخپلی رخصتی څخه پوره خوندواخلم او ورو سته په يوه مناسب فرصت کی يې د خپل حامله توب څخه خبر کړم. خو کله چي (برينډل سی) ته ورسيدو دستی‌ديوه مشکل‌سره‌مخامخ سوو . هغه دا ؤ چي ټوله هوټلونه ډك وه. څو ساعته بی نتيجی په ښار کی وگرزيدو. وروسته چا را ته‌وويل چي تر ښار دباندی انا قونه اوکوټی شته هلته مراجعه وکړی. دغه کوټی‌د يوی فرعی خاکی اوږدی کوڅی په‌پای کی واقع وه. هغه ځای چي موږ ته‌يې راښوولی ؤ ډير کثيف معلو ميدی. دکور مالکه يوه ښځه وه هغی راته وويل :

ـپو هيږم چي دا ځای ستاسی د طبع سره سم نه دی اما ډير آرزانه دی .

(گرهام) سمد ستی ديوی هفتی کرايه ورته ور کړه .

ـگرانی، موږ بايدپه خپل خرڅ کی سپما وکړو .

په غمگينه لهجه مي ورته وويل:

ـچي‌دونه داقتصادی پلوه له‌پښنو پاته يو نو څه ضرور ؤ چي د کوره راوتلو ؟

سره سور وشين سو ويې ويل:

ـدا مابده خبره وکړه، ورو سته يې خپل آواز نرم کی لاسونه يې راباندی راوگرزول او پر خو له يې مچ کړم .

څوورځی موهلته تيری کړی ، ښه لمر او ښه هوا وه. مگر(گرهام) زياتره درديدی‌او د شپی چي به‌رقص ته تلو تر انده پاسه شراب يې‌څښل.

په پای کی ددی تکرار پرو گرام څخه بی اندازی ستومانه سوم نويوه شپه مي ورته وويل چي نن‌به دنځا اوشرابو دپروگرام په‌عوض کی سينما ته‌ولاړ سو داوار هم (گرهام) سخت مخالفت وکړ.

ناچاره وم ورته ومی ويل چي‌ستا پر مرضی به هر چيری چي ته وايی درسره ولاړه‌سم. خوبيا هم‌وغړمبيدی او ويې ويل :

ـډير لطف کوی! هلته هم مخامخ راته کښينی او هر وار چي زه ديوه گيلاس مشروب فرمايش ور کړم ته په خپل نيښس وهونکی نظر زما آنرا تمام کړی .

نوز مي ونه کړای سوای حوصله وکړم، نو چغی مي کړی :

ـته چي تردی اندازی زما د راتگ سره مخالف يې نو ولی په څر گند ډول نه راته وايی .

ـدادی اوس به درته ووا يم څه (راځخه ورکه سه!)

ـپر دواړو سترگو !

دموټر دروازه مي خلاصه کړه او راکښنته سوم . په زړه کی مي ويل چي اوس به مي بير ته راو گرزوی، مگر ده په عوض کی د موټر دروازه په ځان پسی وتړل او په ډيره‌تيزی‌يې موټر رهی کړ او راځخه ورك سو .

زه يوه شيبه هکی اريانه پرهغه ځای‌ولاړه وم، ټوله بدن مي د قهر او خښم احساس کاوه .

ورو سته مي عزم وکی چي يوازی سينما ته ولاړه سم څو يو ساعت وخت په دی ترتيب‌تلف کړم .کله‌چي له سينما را ووتم ورو ستی سرويس تللی ؤ. نو مجبوره وم چي ټوله لار پياده ووهم. پر لاری مي فکر کاوه‌چي (گرهام) به کورته راغلی وی. اما د (گرهام) الپو شاکه نه وه .

خوا شينی و غزيدم او غو ږونه‌مي دروازی ته نيولی وه چي گوندی (گرهام) راسی .

کرار کرار مي‌ستر گی درنی سوی اوبيده سوم.

چي ستر گی مي‌راروڼی‌کړی لمر ترکړکی رالويدلی ؤ.

دتيری شپی دخاطری درا په زړه کيدو سره سمدستی پرځای‌کښينستم (گرهام) ټوله شپه دباندی تيره‌کړی وه. اوه‌خدايه.

ښايی يوه‌واقعه ور پيښه‌سوی‌وی. ښايی په روغتون کی بستری وی، ښايی د خپله لجه څخه کورته نه‌وی

تقريبا دورځی يوولس بجی وی‌چي يو موټر دکور مخ ته ودريدی. زه په اميد کی وم چي اوس به (گرهام) ، رانښکاره سی .

## ستا په عشق کی

کهزړه ستا په عشق کی چاك شو نشته باك
کوم دی زړه چه ستا له غمه ندی چـــاك

زړه پر خدای سپارمه هر څـــه وزبیښمیږی
پهخوبانو یی موقوف شو مرگئ واك

رحم وکړه چی لدی غمه بیغـــم شم
ساقـــی راکړه ماته څه اوبه د تــــاك

چه یو ښکلی چیری وویني بندی شی
خدای خرار کړی زړه له زمه ندی پـــاك

دمعنی ښایی بویه په رنگـــك خه شی
دکافورو قدر نه لری اهـــــــــــــاك

که مجنون د لیلی غم زبون کړی
یاری نهؤ دجنان په رنگك هلاك

میرزا جنان

## د زړه درمزونه

چه پاره می خپل گوگل کړ دفکرونو په خنجر
یو صنعت دطبیعت می له گوگله کړ بهر

دسرو غوښو سره ټو ټه وه پـــه صورت ډیره وړه وه
په سیرت تـــــــر آسمان لویه هم په طول وه هم په بر

دسرو وینو فواره وه که دسره یاقوت دانه وه
یادلعلو خزانه وه چی می راغله په نظر

دناکامه هیلو گورؤ هم دنوی آرزو کور ؤ
لدی ځایـــه پاڅیدلو هر آرمان دهر بشــــر

همد تیر یادو کتابؤ هم دنـــــوی ژوند خطابؤ
هرهر څه پکښی موجود ؤ خو څوك نهؤ په خبر

پهنرمی تر اوبو نرم په سختی تر کانی سخت ؤ
همدزهرو کان په کی ؤ او هم کانؤد شکر

ددردمن د دردطبیب ؤ حق ویونکی عند لیب ؤ
خو ساتلـــی طبیعت ؤ په قفس کی دځیگر

دغمونو آشیانه ؤ هم د مینـــــی خزانه ؤ
د ضدینـــــو ننداز بون ؤ ما کتل ورته اوتر

شاهکار ی دطبیعت ته هسی رنگه په حیرت شوم
چی می ژبی ویل هیر کړه کسی کړ رسوه غوږ می کر

زړه معما د ژوندانه ده محبوبی حل به یی نکړی
تاخصلت دزړه بیان کړ ډیر خلص او مختصر

زړه دژواك دراز مسکن دی دمرموزاسرار مخزن دی
دژوندون مانی بناء ده د ماشوم زړگی پرسر

بلقیسه محبوبی

نساغلی بریالی

## دجدایي دوزخ

ښه یو هیږم چه یی غم کی را قریب
اول عشق دوهم فراق دریم رقیب

وریته وی می په دوزخ دجدایی کښی
اول بخت دوهم فلك دریم نصیب.

زهرماری دشفا به جام کی راکړه
اول شیخ دوهم ناصح دریم طبیب

زمادزړه پرښار په زور رحم کرانی کا
اول سوز دوهم الفت دریم حبیب

تر گرز لاندی یی بهی رنگه زیړ کړم
اول درد دوهم ایاس دریم لبیب.

دتقوا جامی یی و کښی زماله تنــه
اول ناز دوهم جوش دریم غضب

دادرو څیرو پر بیدردو بریالی کړم
اول شعر دوهم جوش دریم شغیب



## د یار پر در

چی مسکن زماد زړه شود دلدار دار
بیلتانه را باندی راوړ په یووار وار

بی صبری می وشلاوه امیل دپتهی
اوس په غاړه می بسته کړو داظهار هار

پدی سربه هرگزنه وم اقرار شوی
باری څه و کړم چی نشی په انکار کار

خیل صورت به پس له مرگه په محشر کښی
کړم بـــه یاره ستاد مخ له لاله زار زار

زه عظیم چه شوم قبول د یار پـــه در کښی
ځکه شـــو په رقیبانو غم دوبار بار

عبدالعظیم

## دمشکو بوی

آفرین دپه‌ولول تورو سنبلو

چي یې ځای دپاسه ونیوه په گلو

ماحي ستنه‌دشو نموونې سره مزه‌کړل

مستغني شوم دجهان له‌واړو ملو

که په اصل پښتنه دهندو ستان یې

داد ظلم دزده کړ له دښمنو

مگرموردې‌دخطا دملك هوسې ده

چي‌دمشکوبوی د دروې له کاکلو

نه په هومره تمناکښې دابه‌خاشي

چي نه هرکله په‌هومره تغا فلو

دهرگل ننصفت‌کاپه زړز بو

په دابـا غ کې چې غو غا ده دبلبلـو

دخوشحال په‌زړه‌یې‌هسې چاړې‌وکړې

لکه بازچې‌زرکه یوسې په منگلو

خوشحال خان

## دچاوی؟

خوبن دمیو سره پیاله انعام‌دچاوی

زما په‌برخه‌حواله مرام د چـــــا وی

تبسم چي زینت‌بخښه رنگ‌پاشان کړی

پرژاله‌باندی لاله گلفام دچا وی

دجمال پر آئینه خوبان زاتـــول‌شول .

پر سپوږمـــی‌هسې هاله قیام د چـــــا وی

چه په خیال کی حصار نه وی‌دـعشاقو

داد زلفـورساله اعزام د چـــــا وی

پر سدره مرغه د مینـــی آواز ـکښلی

که‌سوزی‌آه وناله پر بام د چــــا وی

د وحدت په جام سرشار مستانـــه‌غواړی

دطهـورشراب واله مدام د چـــــا وی

هغه‌باغ چی‌دوصال میو ی پـــــه‌زانگی

دهغه‌باغ‌قباله پر نام د چـــــا وی

چي په صبر شگفته شــــــی‌گلبیداره

خپل‌عشقی‌گلشن پاله خوشکام د چــــا وی

گلبیدار



## د محبت داغ

دمحبت داغ پر زړگی باندی هرآن‌لرمه

لاس می‌کوتاه په زړه‌کی‌یو جهان‌ارمان لرمه

عرق دگل قوت دزړه ماته لازم‌وملزوم

په‌ناکامی‌کی ړندی سترگی وچ شونډان‌لرمه

گوره داور لمبی‌د عشق می هردم‌گرځی پرتن

یاقوتـــی‌اوښکی په‌نشه‌کی د هجران لرمه

خوبؤ خوراك ،خندا می واړه‌ترك‌وهلی یقین

دزړه دوینوخه‌سور ځاځکی پر گریوا ن لرمـــه

عمر عبث راباندی تیرشو گل‌مـــی‌نکی‌پیدا

پرعاشقی‌باندی دلیل حاجت برهان لرمــه

چی‌په هجران عبدالمنان نرجاراوه‌دل‌وجان

زه‌غریب‌طمع ددوستی دهغه ځوان لرمه

**ملاعبدالمنان حیرت**

# د ځوانانو کړۍ

عبدالعزیز هلال

## ځوان او ځواني

دا یو څرګند حقیقت دی چې په روانه او پرمختللې تېره کې د ځوانانو علمي پانګه او وطن پرستانه هلې ځلې د هر څه څخه ډېرا لوړ او منلي مقام لري اوس مهم او حیاتي ټکی ته ځوانان په ښه توګه خبر او متوجه شوي دي زموږ ولس اوس اوس کولی شي چه د ځوان د کلمې معنی او مفهوم په ډېره ښه توګه درک کړي سربېره پدې زموږ د ځوانانو سره ددې خیال شته دی چې د خپلې ټولنې او د هیواد د آبادولو په لیاره کې خپلې ملي په وطن پرستانه احساس سره راپورته او خان د خپل ملت د یو واقعي ملاتړ او پښتني ځوان په حیث وپېژني ځوانان باید په نه ستړي کېدونکي او قوي ارادې سره د خپلې ټولنې د ستونزو د مینځه وړلو په شکله خپل روحي، جسمي او فکري او همدا رنګه مادي او معنوي قواوې په کار واچوي او د خپل ولس د دردونو درمل ولټوي او د ژوندانه ستر هدف یعنې د هیواد پرمختیا او د خپلې ټولنې هوسا ژوند د خپل زیار او کوښښ محصول وګڼي، دلته باید ودې ټکي ته ګوته ونیسو چې ډېرو زړو پېړیو دا ثابته کړې ده چې ځواني په هر وخت او هر زمان کې د ابداعو او اختراع ګانو مصدر ګڼل کېږي داځکه چه دا یو ښکاره او څرګند حقیقت دی چه د هر ولس او هر ملت میدونه، آرزوګانې او سربېره پدې ټول امیدونه باورده او با احساسه ځوانان تر لاسه کولی شي او هر ولس د خپلې ټولنې واګې د با احساسو او باوردو زلمیانو په لاس کې ورکوي ځکه چه دوی خپله نیکمرغي او سوکالي د هغوی په مټو کې په ښه توګه لیدلی شي اوس نو دا ویلی شو چې ځوانی ته هغه ستره نیرو ویلی شو چه عجیبه او بې ساري غوندې معجزو ته ورته او راز راز تولیدات مینځ ته راوړلی شي. دا یو څرګنده خبره ده چه د ځوانۍ هلې ځلې او نه ستړي کېدونکي فعالیتونه ددې سبب شوي چه پرده یې څېرې او حقیقت یې لوڅ کړې دی او په ټولنیز ژوند کې یې رنګین پسرلي مینځ ته راوستلي او له دې داچه انسانیت یې د خپل هدف پړاو ته په مترقي توګه په ډېره چټکتیا سره رسولی دی نو اوس باید په زغرده وویل شي چې په ټولنیز ژوندانه کې ځوانان خپل ځان او خپل ورپه غاړه مسؤلیت په ښه توګه وپېژني. ځوانانو ته ښایي چې خپلې ورسره قواوې په داسې لارو کې په کار او فعالیت واچوي کوم چې زموږ د ملي او مترقي نظام د نیکمرغه اساساتو سره سم او زموږ د ټولنې او بشریت نیکمرغي پړاو ته روانه وي دلته ویلی شو چه زموږ ځوانان اوس اوس د قوي انرژۍ او قوي مټو خاوندان دي نو په کار خو دادی چې خپلې مترقي قواوې د خپلې ټولنې د پرمختیا او ښه پاللو په لیاره کې وده سپموي پدې یقین لرو چه زموږ د ولس او ټولنې استحکام او ترقي او آرامي د جمهوري نظام په رنګینو مترقي اساساتو کې پرته ده اوس ددې امید شته دی چه زموږ د ولس او ټولنې د ژوندانه سطحه پراخه او ژوند به مو په ښه توګه تامین شي. زموږ ځوانان اوس اوس د خپل هیواد د پرمختیا دپاره ټینګ عزم او کلکه اراده لري او د خپل ګران افغانستان دپاره پدې نیکمرغه نظام کې په پوره مینه او علاقه په خپل کار بوخت دي لکه د پخوا په څېر دلته او بیکاري څخه کرکه کوي خپله نیکمرغي په کار او فعالیت کې په ښه توګه لیدلی شي. د خپلې ټولنې د نیکمرغي په هکله د ویلونه کولو او د نیت نه یې عمل ته اوړه ورکړې دی، زښتینې او پوه زلمیان اوس پردي تقلیداو موډ پرستۍ په کلکه سره غندي خپل مذهب او خپل افغاني عنعنات او رسومات منلي او محترم بولي. اوس به راشو ودې ټکي ته چه ځینې ځوانان زموږ په ټولنه کې لیدل کېږي چه د کار او کسب څخه تښتي او د کار او فعالیت انرژي په خپل وجود کې نه ویني خپل وخت په بې ځایه ګرځېدو سره لاسه ورکوي خو بیاهم دوی ادعاکوي او غواړي ژوند یې ډېرا نیکمرغه په سویه آرام او نیکمرغه ژوند ولري دوی غواړي چه د ستړیا او زیار ګاللو سره هیڅ وخت مخامخ نشي هر څه چه یې زړه وغوښتل هرو مرو باید ورته ورسېږي د دغه ډول ځوانانو اصلاح کول دچا په غاړه دي طبعاً پدې برخه کې مور او پلار ستر مسؤلیت لري چه داسې اولادونه وته روزي چه نه ورسره د کار خیال او نه ورسره د هیواد او ټولنې د پرمختیا او لوړتیا فکر وي.

دغه ډول ځوانان د تل دپاره په خپل ژوندانه کې د ستونزو سره لاس او ګریوان وي او د ژوند څخه کرکجن څه چه د خپلې کورنۍ او خپلې ټولنې دپاره راز راز بد بختۍ مینځ ته راولي دا ځکه چه دوی ته بې عزمه او بې ارادې ځوانان ویلی شو.

ا.س :

## ځوانان باید د بېځایه لګښتونو او دودونو د مخنیوي پر ضد کلکه مبارزه وکړي

ډېر ځله لیدل شوي دي چې زموږ زیاتره خلك په ودونو او نورو دارنګه دودونو کې دوه مره ملامتو ټکي. بېځایه او بې موږده لګښتونه او مصارفونه کوي چې په هغه سره د زیاترو کورنیو اقتصادي شیرازې تر ډېره وخته پورې د نابرابرۍ او ویجاړۍ سره مخامخ کېږي او په اصطلاح تر ډېره وخته بیا خپله دمه نه شي سمازولای.

البته زموږ په محیط کې ډېر ودونه د سیالۍ د روحیې پر اساس تر سره کېږي چې په دارنګه کارونو کې ډېر لږ د فکر کولو او منطقي کړو څخه کار اخستل کېږي چې همدغه بېځایه او بې موږده سیالي دي چې زموږ د خلکو د اقتصادي بنیې د خرابېدو او په ژوندانه کې د ځنډونو سره د مخامخ کېدو او کورنیو اړیکو د خرابېدو سبب ګرځي. ممکن یوه کورنۍ بډایه او زیات شته ولري او د خپلو ځانو د پاره ډېر څه قیمتي ګڼي او زیات شمېر نور څه

نور په مقابل مخکې




ارابو اونهیه کاندی اود ودونو په وخت کی هم زیات لګښتو نه ولګوی او ډیر ښه او ګرم مجلسو نه جوړ کړی چی بیا به یی هم ددغو ټولو شیانو په کړو سره اقتصادی حالت ته هیڅ صدمه او زیان نه وی‌رسیدلی اویا دارنګه مصر فو نه هیڅ ورته ښکاری ولی ډیری داسی کورنی شته چی د دا ډول آسبابونودرانیولو او تهیه کولو توان، طاقت او قدرت نه لری نو هغوی تش د سیالی‌له‌مخی او یادا چی وایی دوست او دښمن‌سته باید تر خپلو دوستانو ، خپلوانو او سیالانو پوری خانونه کم او ټیټ رانه ولو نو دپور اخیستلو او دهغه اودغه خخه په قرض اخستلو خان تر داسی بار لاندی کوی چی پورته کول یی ورته ګران او متسکل ښکاری چی په دی توګه خپل اقتصادی حالت داسی ویجاړوی چی بیا د کلونو کلونو په تیریدو سره نسی کولای چی خان‌به ښه وډر وی چی همدا وضع بیا ورو ورو روحی تکالیف رامنځ ته‌کوی چی د ډول ډول ناروغیو او کړاونو دمنځته راتلو سبب هم ګرځی او هم دغه ناروغی اوروحی کړاونه‌په کورنی اوټولنیزو مناسباتو او اړ یکو کی نامطلوب او منفی تاثیرات ښندی .

د دارنګه نامطلو به اوبی فایدی دودونو ، بیځایه لګښتو نو ا و ، مصارفا تواوبی مورده‌سیا لیومخنیوی کول او دهغه سره په کلکه مبارزه کول دځوانانو او روشنفکره‌اشخاصو وظیفه او دنده ده .

ځوانان چی تل په هره ټولنه کی دخرافاتو او داسی دودونو چی اصلا هیڅ راز ګټه او فایده نه وی‌پربنا سخت مخالف دی نو زموږ ځوانان چی تر پخوا اوس زیات داسی نقاطو ته متوجه او خپل پام یی اړولی دی داباید‌خپله وظیفه وبو لی‌چی‌د خپلی ټولنی په دننه کی د دا ډول بی‌مورده بی ګټی اوبی فایدو دودونو ،سیالیو او لګښتونو د له منځه وړلو په لاره کی په کلکه مبارزه وکړی او عملا د خپلی ټولنی غړو ته په خپلو کړوکی هغه وښیی .

---

خاموش

## باج

چی‌د ښکلو ګلرخانو څوك مزاج‌وړی
نوپه ژوندکی‌دمظلوم غوندی احتیاج وړی
داقانون د محبت دی وصال هـ‌وی
زورور آشناد مینی دا رواج وړی
چی‌په شوخ او په مغرور حسن‌مین‌شی
سودا یی شی‌دآشنا د وصال جاج وړی
مینه روح د ژوندانه دی چی‌وفـاوی
حسن‌ګوره‌چه شاهانو څخه تـــاج وړی
زړه او فکر خیال شعور راڅخـه‌یوسی
لکه ټوله شتمنی چی‌ستا مواج‌وړی
دژوندون د لاری مل مشعـــــل‌دحسن
غمازان زمـــادلاری نه سراج وړی
دجاګیر مال او دولت قلنګ‌مـی‌نشته
خو خاموش‌دیار د سرو شونډو نه باج وړی



د ښښتون عمری ژباړه .

# زینت امان و پیژنئ

د هند د سینما یوه تکړه لوبغاړی زینت امان ده چی عمر یی ۲٤ کالو ته نه رسیږی دغی لو بغاړی په لږ وخت کی زیات شهرت ګټلی دی . هغه لمړی فلم چی دی کار پکښی کړیــــدی ، (اری راما اری کرشنا) نو میږی‌چی په اصل کی ددغه فلم هیرو ئیـــن ممتازه وه خو ددغه فلم په څو صحنو کی زینت امان ښه رول درلود.

دزینت امان دپلارنوم امان الله‌دی پخوایی پلارهم په فلم کی‌کار کاوه اوهغه فلمو نه چی دزینت امان پلار پکښی کار کړیدی یو یی هـــم د (مغل اعظم) فلم دی د زینت‌امان‌مور دالمان‌ده زینت امان چی دکوچنیوالی څخه‌داهیله درلوده چی‌د ستیج‌پرمخ ولیدل شی هغه ژچی تر تحصیلا تو څرګندوی دی . ورو سته دفلم اخستلو په یوه‌موسسه کی شا مله شوه. هغه مشهور فلمونه چی زینت امان کار پکښی کړی دی روټی کپړه اور مکان، یادوکی برات (وارنت) او(اجنبی) فلمونه دی .

زینت امان واده نه دی کړی او داسی ویل کیږی چی دیوانند پـــر زینت امان زړه بایللی دی. زینـــت امان ته پاك خدای داسی رسا قد او ښایست ورکړیدی‌که هرڅومره‌ددوی دښایست صفت وسی بیا به یـــی هم حق نه وی‌ادا شوی. دغه دښه اخلاقو او زړه وړونکی ښایســـت درلودونکی هنر منده د هرلیدونکی زړه‌وړی اودابښکاره خبره‌ده کله چی زینت‌امان په‌لاره‌ځی ددی‌د ښه اندام

# د ۲۰۰۰ کال پیشبیني

په اقتصاد کې د نړۍ د جایزې وړ نګي واسلي‌لیو نتیف د اقتصادي متخصصینو د یوه پنځه لس کسیز ګروپ په مشرۍ چې په ټوله نړۍ کې یې ښه شهرت ګټلی دی د نړۍ د اقتصاد په باب مطالعې کړې دي چې **دغه مطالعې د هیوادو د اوسني حالت** څخه شروع او تر دوه زرم کال پورې دوام پیداکوي د ارقامو تحلیل د لیو نتیف د اقتصادي مشهور تخنیکي تحلیل اوت پوت انپوت (د حاصل عامل) په وسطه چې اوس د نړۍ په ډېرو هیوادو کې د ملي محاسبو او **اقتصادي پیش بینیو دپاره ورڅخه** کار اخستل کیږي شوي دي. هغه ارقام چې لیو نتیف او دده همکارانو تر تجربې لاندې نیولي‌او تحلیل‌کړي دي د ملګرو ملتو او نورو علاقې وړ موسسو په‌واسطه را ټول شوي دي د دغو مطالعو مهم اساس او پایه د ملګرو ملتو هغه اعلامیه چې ۱۹۷۰ کال‌ته د پرمختیا دوهمه لسیزه بولي تشکیلوي او د دغو مطالعو مهم‌هدف داری د ممکنو اقتصادي پرمختیا هدفو نه د طبیعي منابعو سره‌اړیکي ورکوي اوکه‌نه؟ خصوصاً په دې باب چې ځیني منابع محدودې بس آیا لازمه نه‌ده چې دغه غوښتل شوی انکشاف تعدیل شي؟ آیا د نفوسو سویاتوالي او محیطي ساتنې په اقتصادي انکشاف ناوړه اغیزه نه‌کړي، اوآیا د اکار د جغرافیې د منابعو د غیر مساوي ویشلو سره هم آهنګ دی؟

د دغو مطالعو اوس‌اله د ۱۹۷۰ کلونو راهیسې بیاتر اوسني پېړۍ پورې دوام کړی دی. دلیل دادی چې پرمختیا یو داسې کار دی چې د وخت په‌تیریدو یو ري اړه لري‌په ۱۹۷۰ کال کې د مقداري اساس د جوړېدو په‌خاطر څلوېړي‌مطالعې‌وړاندې وشوې یو جهاني اقتصادي مډل جوړ او د هغو فرضیو سره چې د ۱۹۸۰، ۱۹۹۰، او ۲۰۰۰ کلونو دپاره قبول شوي ؤ مقایسه شو. په دغه مډل کې نړۍ پر ۱۵ سیمو باندې ویشل شوې او هره سیمه د ۴۵ اقتصادي فعالیتونو د سکتور په‌دننه کې لکه د کرنې سکتور د کانو سکتور، صنعت، حمل‌و نقل، مواصلاتو، خدماتو او نورو سکتورو په برخه کې تحلیل شوي دي که څه

هم‌هره سیمه په ځانګړي شکل معامله شوې خو د هغوی‌مډل د یوه ارتباطي پیچلي میکانیزم او تخنیک په‌واسطه یو ځای شوی چې په‌هغو کې د صادراتو او وارداتو د پانګې د جریان، بیله عوضه انتقالاتو او د هیوادو تر منځ د ګټې د تادیې فکتورو نو ته شامل دي د تکنالوژي تغیراتو د تولید مصرف او نسبي بیې هم په دې مډل کې د نظره څخه لیرې نه‌دي او په هغو کې شامل دي د محیط اساسي فکتورونه چې د محیط د ککړتیا او د غذا یي موادو د تولیداتو څخه عبارت دي.

په لمړۍ مرحله کې داسې فرض شوې ده چې د اوسني اقتصادي انکشاف او نفوس ارتباط په‌پرمختللو او مخ په‌انکشاف هیوادو کې داسې‌ؤ چې‌پرمختللي هیوادو نه چې پرمختللي هیوادو نه د غیر خالصې اجتماعي په‌سلو کې د څلور اعشاریه پنځو محصول لرونکي دي او یا دغه هیوادو نه په‌سلو کې‌دري اعشاریه پنځه سړي سر د عایداتو د انکشاف

دراوړونکي دي خو مخ‌په انکشاف هیوادو نه د غیر خالصې اجتماعي محصول په سلو کې شپږ انکشاف دراوړونکي دي او یاد سړي سر عاید به‌یې په‌سلو کې دري اعشاریه پنځه وي.

په‌دې اساس د همدې فرضیې له مخې به د دغو دوو ګروپو هیوادو یعنې غریبو او نیستمنو هیوادو تر منځ د زړوندانه خالیګاه په منځنۍ توګه د ۱۹۷۰ کال خالیګاه یعنې د دوولس اویو به وي چې په وروستیو کلونو کې‌به په همدې تناسب با ندې پاتې شي به هره انداه چې د مخ‌په‌انکشافو هیوادو کې د انکشاف پایه‌او اساس ډېر مختللو هیوادو په نسبت لوړه ږي‌به همدې اندازه سره په دغو هیوادو کې نفوس هم‌په ډېر ه‌چټکې سره زیاتیږي په دې لحاظ به‌د هغوی د مالونو حصول، خدمتونه او استهلاك هم پر هر تن‌باندې د اوسني

حالت د‌په‌نظر کې نیولو سره زیات شي.

باید ووایو چې پیشبیني‌د انکشاف د دوهمې لسیزې د هیلو په خلاف ده چې‌وایي تر ۲۰۰۰ کال پورې به‌د بډایو او نیستمنو هیوادو تر منځ د ژوندانه خالیګاه لږه شي.

د لیو نتیف او همکارانو مطالعې ۳۵۰ مخه کیږي خو هلته یې ویلي دي چې د انکشاف‌او پرمختګ‌د دوهمې لسیزې هدفونه هغه وخت تر سره کیدای شي چې هیوادو نه جدي اقدامات وکړي او‌په بیلو بیلو برخو کې ګټورپلانونه‌د امکاناتو په‌حدودو کې عملي کړي محققین لیکي چې کولای شو پر مختګ د اوسني‌تخنیك په‌واسطه یوازې او‌یوازې په کال کې په‌سلو کې د اجتماعي غیر خالصې محصول دیو نیم څخه تر دوو پورې په‌مصرفیدو سره لاس ته راوړو.

د مطالعو څخه د اخر ګنديږي چې‌په مخ په انکشافو‌هیوادوکې به‌د تادیاتو د بیلانس کسر ښکاره شي خو ویل شوي دي چې کولای‌شو هغه د مالونو

پر مختللو هیوادو د مونو فکتور په واردولو او د مالي انتقالاتو زیاتوالي نه‌تخفیف او لږ وا لی ورکړی‌امکان لري ځیني ځیني‌هیوادو نه د منرالونو خوړو اونورو اومو موادو لوړو بیو څخه تاوان ووینې خو خصوصي طرحې د دغې لارې د بې موازینګي د لږ وا لي سبب ګرزي د دغې‌مسلې **دحل بله لا ره دا ده چې مخ په** انکشاف هیوادو نه د توریدي مونو فکتورو نو سره د صناعتي کیدواود خملو موادو د پکار لو یدو د لارې نزولي اړیکي ولري.

**لیو نتیف په‌یوه مطبوعاتي‌مرکه کې** څرګنده کړه چې په‌اوسني حالت‌کي د انکشاف ډېر لوی محدود یتو نه‌په پرمختللو او‌مخ په انکشافو هیوادو کې نه‌یوازې فیزیکي محدود یتونه دي‌بلکه زیاتره محدود یتو نه‌سیاسي او مو سساتي دي دي ځکه په دې عقیده دي چې‌په ډېر لوی فدا کاری سره په نیستمنو او بډا یو هیوادو

کې انکشاف دوام پیدا کوي خصوصاً که‌بډای هیوادو نه هر کال د خپل انکشاف څخه په‌سلو کې د یوې برخې څخه صرف نظر وکړي په دې‌صورت کې به‌په نیستمنو هیوادو نو کې د انکشاف سطح ډېره لوړه شي زما **شخصي هدف دادی چې: (په‌نړۍ‌کې** باید داسې اقتصاد تامین شي چې‌د نفوسو ډېر لږ خلك غریب وي چې په‌دې صورت کې اقتصادي پرمختګ **به‌یو واقعي او د لیدو وړ پر مختګ** وي.) دی په مخ انکشاف هیوادو کې د‌مو لدیت د سطحې پر لوړ یدو باندې ټینګار کوي اووایي: «دغه‌کار په شپږ میاشتو او روز نه، صحي **لازمې آسانتیا وې اونوراجتماعي** اصلاحات ایجا بوي هغه خلك چې بیخي وږي دي هیڅکله مولد کیدای نه‌شي» دی په دې عقیده دی چې‌د کار متزاید او زیا تیدو نکي مؤلدیت **د تکنالوژۍ د ډېر چټك انتقال په** واسطه د پر مختللو هیوادو څخه د مخ په‌انکشاف هیوادو خوا ته‌میسر کیدای شي.

چې دغه کار زیا تې پا نګې اچولو ته‌اړتیا لري او دې زیا توی:

«د تکنالوژۍ انتقال د سرمایې تجهیزاتو د اداری د استعداد د نو د توزید سره په ځای جهان پیداکوي چې‌دغه جریان ډېر پیچلي دی ځکه نو لیدی ظرفیت یادنوی تکنالوژي د جذ بیدو قدرت ډېر محدود دی او په واقعیت کې د نوی تکنالوژي انتقال په‌اوسني نړۍ کې یو ډېر قیمتي او اقتصادي پیچلي فعالیت دی خو یوازې څو محدود هیوادو نه د هغو څخه استفاده کولای شي‌د دې جهته څخه چې د دغه تکنالوژي بیه په‌زرو ملیونه ډالره ده او ډېر هیوادو نه د ومرې پیسې نه لري‌څو په دې برخه کې پانګې وا چوي.

ملګرو ملتو ویلي دي چې د دغې مطالعې د تحلیل او نتیجو مسؤلیت د هغو مؤلفینو په غاړه دی او دغه مطالعه خپره هم شوه څو د پوهانو افکار تحریك کړي او بشپړه یقین هم دی چې دغه مساله به‌د علمي‌خبرو دپاره‌ډېره په زړه پورې موضوع وي.

دډاکتر جها نشاه ترجمه او لنډيز

# په‌ماشوما نو کی د پرو تین او کالوری د نشتوالی ناروغی

## ۱ـ عمومیات

نوموړی ناروغی دسؤ تغذی دیو حالت څخه عبارت دی چه دماشومانو په‌غذا کی‌دپروتین‌اوکالو ری‌دنشتوالی څخه منځ ته راځی. که‌څه هم ددی ناجوړی مخنیوی کیدای سی (وقایه کیدای سی) اما بدبختانه دوقایعـو اومړینی دزیاتوالی په سبب پـــه پرمختیایی هیوادونو مخصو صـــا زموږ په گران هیواد کی‌یی سټـــری صحی ستونځی منځ ته راوړی دی.

## ۲ـ اپید یمولو جی

### الفـ دناروغی عامل

دماشو مانو په غذا کی دپرو تینی موادو او کالوری‌نشتوالی دمر ض اساسی عامل تشکلوی.

### بـ کوربه

هغه ماشو مان چی د یویا څلـوړو کالو پوری عمر لری عمو ما پـــدی ناجوړی اخته کیږی اودا هغه ســن دی چه‌ما شوم دمورد شیدو څخه جلا کیږی. یعنی که‌یو کوچنی تـه‌د شیدو خوړلو په دوران کی بیله‌دمور دشیدو څخه بله کومه غذا نه وی‌ور کړه سوی او دفعتا دمور شیدو څخه جلاسوی وی څرنګه چه‌دا ما شـوم دغذادنورو ډولوسره‌بلدیت نلری‌څکه نودپروتین اوکالوری دنشتوا لی په ناروغی اخته کیږی.

### جـ محیطی عوامل

اولـ دماشوم تغذیـ دما شـوم تغذی په‌هر گوټ او اجتماع کی‌دهم هغه‌محیط دکلتوری عوا ملو تر اغیزی لاندی ده. مثلا زموږ دگران هیوادپه اکثره ځایونو کی لیدل کیږی چـه انا په کو ر نـی کی هغه څو ك‌وی خو تصمیم نیسی‌چه‌دشیدی خوړونکی ماشوم لپاره باید څه وخت او کوم ډول غذا ورکړه سی پداسی حـــال کی‌که چیری وما شوم ته منا سبـه اضافی غذا ونه رسیږی نود کو چنی احتیا جات نه پوره کیږی. اوپه ماشوم کی دپرو تین او کا لوری‌د نشتوالی ناروغی منځ ته راځی.

### دوهم اقتصادی عوامل

۱ـ فقرـ فقراو نا توانی دنوموړی مرض سبب کیدای سی.

۲ـ ناپوهیـ دمور درك او پو هـه دماشوم په تغذی او پرو رښت کی مهمه اغیزه لری.

په‌اکثره کور نیو کی لیدل سوی دی .سره له‌هغه چه اقتصادی حالت یی ښه وی مګرچی موریی‌علم‌اوپوهه ونلری بیاهم دنوموړی نارو غـــی واقعات پکښی لیدل سوی‌دی .اما هغه کور نی‌چه میندی یی منوری‌دی داناروغی په نادر ډول پکښی لیدل کیږی نولدی سببه دکوچنی دتغذی په‌باب دمور پوهه ډیره داهمیت وړده اوډاکتر باید همیشه میندی په‌خپلی خاصې مهر بانۍ سره دعلم او پوهی په‌خوا رهنمایی کی.

### ۳ـ کلتوری عوامل

عرف، عادات او کلتور دنو موړی ناروغی په منځ ته راتلو کی مهمـــه اغیزه لری دمثال په توګه ځینی‌خلك وشیدی خوړو نکی ماشو مانو تـــه هګی نه ورکوی څکه دوی پدی عقیده دی‌که چیری نوموړی کو چنیانو ته هګی ورکړه سی ګونګی کیږی.

دریمـ انتانات‌ـ دنوموړی ناروغی په‌ښکاره کیدو کی انتانات مهم رول لری اوء موما دپرو تین او کا لوری نشتوا لی‌نا جوړی منځ‌ته‌راوړی.هغه مهم انتانات چه‌دنی ناروغی سبـــب گرځی داسهالاتو، توره غاړه تـوره توخله نری رنځ کوی. او شری څخه عبارت دی.

### څلرمـ ناوړه او نا ځایی عوامل

په ځینی ځایونو کی دغذا یـــی موادو لږ والی چه دسیلا ونو،زلزلی، وچکالی او نورو عواملو په نسبـــت منځ ته راځی دنوموړی ناروغی‌سبب کیدای سی.

### پنځمـ زراعتی عواملـ دزرا عت

په‌پرمختیا ،دحیوا نا تو او مر غانو دتربیی نه موجودیت داسا ســـی خوراکی موادو کمبود منځ ته راو ړی چه‌دا حالت هم دنوموړی نارو غـــی دمنځ ته‌راتلو لپاره زمینه برا بروی

### شپږمـ دغذایی موادو ذخیره

دخوراکی موادو دذخیر وی‌ځاـ ګوبو او سیلو ګانو نه موجودیـــت دغذایی موادو دضایع کیدو سبـــب گرځی چه‌دا هم په‌غیر مستقیم‌ډول‌تر یوی اندازی پوری دپروتین اوکالوری دنشتوالی لپاره شرایط برابروی.

### اومـ دغذایی موادو حمل ونقل

دترا نسپورت او موا صلا تـــی کربښو پرمختیا دهیواد په گوټ گوټ کی دخوراکی موادو دګر ندی‌انتقال سبب گرځی او غذا همیشه دخلکوپه اختیار کی لویږی چه البتـــه ددی ناروغی په جلو گیری کی تر یوی اندازی پوری مرسته کوی.

### اتمـ دخوراکی موادو دنر خونـو کنترول

دخوراکی شیانو دنرخو نوکنترول ډیر اهمیت لری څکه چه داکار دـ خوراکی موادو دنرخونو دزیا توالـی مانع گرځی اوپدی ډول دنر خونوپه کنترول سره خوراکی شیان دهیواد هرغړی په اختیار کی لویږی.

### دپرو تین اوکا لوری دنشتوا لی‌د ناروغی طبیعی تاریخچه

که‌چیری‌د نوموړی نارو غی‌طبیعی تاریخچی ته نظر واچوو نود کوچنی حـــا لت د حا ملګـی او شیـدو. خوړلو په دوره کی باید وڅیړو.دبار داری په‌دوره کی وخوراکی شیا نوته دمور احتیاجات زیا تیږی څکه پدی مرحله کی مور مجبو ره‌ده چی اضافه غذا یی‌مواد واخلی ترڅو وکولای‌سی خپل اود کوچنی خوراکی احتیا جات پوره‌کی‌نوله‌دی کبله مورد حا ملګی‌په دوره کی په زیاته اندازه کا لوری، پروتین معدنی مالګی او ویټا مینونه باید واخلی څکه بیله هغه به دماشوم وده دقناعت وړ نه‌وی او داسی کړـ چنی چه‌زیږی دطبعی حالت څخه‌بـه یی‌وزن کم‌وی چه دوزن دا کمبـــود دولادت په‌وخت کی‌دپروتین‌اوکالوری دنشتوا لی‌ناروغی‌لپاره زمینه برابروی

ډیرد خوښی ځای دی چی زموږپه هیوادکی وروسته له زیږیدنی څخه کوچنیا ن‌دمور دشیدو پوا سطه‌تغذی کیږی، که‌څه هم دمور شیدی ډیره ښه غذا ده چی دانسا نانو دما شو ما نو دپاره پیدا شوی ده‌امادا هم باید وویل سی چه‌د مور شیدی تـر شپږ میاشتنی پوری دکو چنی لپاره بشپړه غذاده لدی سن څخه وروسته دمور دشیدو بر سیره وما شوم تـه نـــو ر ه اضا فـی غـذا هم‌په په‌تدریجی ډول باید شروع سی‌څکه له‌یوه پلوه شیدی خوړو نکی کوچنی غټیږی او خوراکی احتیا جات یـی وپخوا ته زیاتیږی اوله بلی خـــوا وروسته له شپږ میا شتنی څخـــه دمور شید ی په تد ریج سره لږیږی که‌چیری له پنځه یاشپږ میا شتنـی سن څخه وروسته دمور دشیدو برـ سیره اضافی خوراکی‌شیان وکوچنی ته‌ورنکړه سی دماشوم وزن تو قف کوی‌اوکه داحالت دوام وکړووروسته له‌څه وخته یی وزن سقوط کوی څکه یوازی دمور شیدی دماشوم غذا یـــی احتیاجات پوره کولای نسی.

نوربیا

کند هار




د شهزاده سلطا نزوی لیکنه

# دوالیبال لوبه څنګه او چیری منځ ته راغله

والیبال د اجتماعی لوبو څخه یوه په زړه پوری لوبه ده چه په اتلس سوه پنځه نویم کال دامریکا دهیلیو گی په ښار کی .ویلیم مارګن ،مینځ تـــه راوستله .ویلیم مارګن پدغه ذکـــر شوی ښار کی د سپورت یو ورزیده ښوونکی ؤ .

داهم باید وویل شی چی په اتلس سوه نویم عیسوی کال د هیلیوگی په ښار کی د دوو تنو ټینس بازانوتر مینځ دټینس لوبه شروع وه چی ددی دوو تنو لوبغاړو د لوبی د تماشاله پاره ډیرسیل کوونکی راغونه شوی ؤ.

دتماشاچیانو په ډله کی، ویلیم مارګن هم حاضرؤ .ویلیم مارګـــن ته ددی دوو تنو لوبغاړو لوبی تردی اندازی خوندورکړی .چی دی یی ودی ته مجبور کی چی ددی سپورت په بغل کی یوبل داسی سپورت مینځ ته راولی چی په ژمی او دوبی په اطاق اوآزاده هواکی اجراشی نو هغهؤ چه په اتلس سوه پنځه نویم ع کال یی پس لـه ډیرو فکرو څخه د والیبال لوبه مینځ ته راوړه دی لوبی په اتلس سوه شپږ نویم ع کال کی د امریکا په متحـده ایالاتو کی پر مختګ وکړ.

اولس ما دی یی ورته وضع کړی.

دلومړی ځل له پاره په نولس سوه عیسوی کال د کاناډا محصلینــــود والیبال لوبه د امریکا څخه دسوغات په ډول دځان سره وخپل هیواد تـه یووړه. او هغو هم ددی لوبی ســره بلدیت پیدا کړی .

ددوهم ځل له پاره د والیبال لوبی وآسیایی هیوادو ته لکه جاپان،چین افغانستان ، فلپاین او داسی نورو هیوادو ته یی پرمختګ وکړ. اودغو هیوادو یودبل سره لوبی اجراکولی.

په اروپاکی هم د والیبال لوبه د امریکا د جنګی افرادوله خوا وهغــو هیوادو ته وروښودل شوه .

په نولس سوه شپاړس عیسوی کال د انګلیستان خلکو ددی لوبی سره علاقه پیداکړه او په نولس سوه شلم ع کال کی د شوروی اتجاد خلکو په رسمیت وپیژندله او دالوبه یی شروع کړه.

مګرپه نولس سوه دوه ویشتم ع کال دامریکا په ټولو ایالاتو کښـــی پوره رواج شوه او پرمختګ یی وکړ. ټور نمنتونه یی پیل شول او لوبی یی اجراکولی .

په نو لس سوه څلوردیر ش عیسوی کال کی دلومړی ځل له پاره دوا لیبال بین المللی فدرا سیون تشکیل شوچه پدی کمیته کی پنځوامریکایی هیوادو شپږو آسیایی هیوادو او دیارلســـ اروپایی هیوادو برخه اخیسی وه.

دغی کمیتی وغوښتل چی پـــــه راتلونکی المپیایی لوبو کی تغیـــر راوړی مګرد دو هم جها نی جنګـ په خاطر معطل شوه .

هغهؤ چی په نولس سوه اته څلویښت عیسوی کال کی بل کمیسیــــون تشکیل کړه شو چی پدی کمیته کی شپا ړس هیوادو ګډون وکړ.

داهم دیادو نی وړ خبره ده چـــی افغانستان خپله لومړی دوالیبــــال خارجی لوبه د شوروی اتحاد سره په نولس سوه پنځه دیرشم عیسوی کال اجرا کړه د شوروی اتحاد ټیم په دور سره اود افغانستان ټیم بیله دوره څخه لوبه اجرا کوله .

مګر په نو لس سوه اوه پنځوسم عیسوی کال ددی دپاره چی دوالیبال لوبه سقوط ونه کړی نویی دلوبغاړو تعداد د اتلس تنو څخه و دولس تنو ته راټیږ او نوی قوانین یی ددی لوبی له پاره وضع کړه چی تر اوسه هغه قوانین د والیبال په لوبه کی مراعت کیږی.

په نولس سوه شپیتم عیســوی کال د والیبال لوبی په شوق ســره شروع شوی او په نولس سوه یوـ شپیتم عیسوی کال د لوبغاړو یـــه تبدیلیدو کی تغیرات مینځ ته راغله. په پخوا کی چی د لوبغاړو تعدادنهه تنهؤ څلور تنه تبدیلیدای شوه.مګر اوس چی د لوبغاړو شمیر شپږ تنه دی نوشپږ تنه نور هم تبدیلدای شی.

والیبال لوبه په نولس سوه څلور شپیتم عیسوی کال کی والمپیایی پروګرام ته شامله شوه .

## غیر لازمی بیری...

دخپل ځان په شا نی کی او دغـه کار هیڅکله د نوو او کم تجر بــه ځوانانو له وسه نه شی کیدای دبیری دنقویی دوهم عنصر دهمهغه بی ځایه تهد ید او منت کو ل دی چی و لی په فلانی اندازه بااخلا قه اواجتما عـی نه دی.

له دغه ځایه دوالدینو رول دکو چنی په تربیه کی برملا کیدای سی او باید وپو هیږو چی دکو چنی او نـــوی ځوان څخه تر حده زیاته تو قـــع درلودل لازمه نه ده بلکه دلویا نـو توقع باید دهغوی دمعلو مات،تجربی اورشد له اندازی سره متنا سبه وی.

نوی ځوانان باید تشویق شی څو یو وخت یی په ریښتیا هم کا ر د ونه لوړو درجو ته ته ورسیږی چی نــه یوازی دلویانو سره برابری وکړی بلکه له هغو څخه هم څو کاله دمخه قدم وا خلی او ولوړودرجو ته ورسیږی ترڅو هیڅ ډول ناحقه او بی ځا یه بیری دکو چنی په پاك ضمیر کـــی ځای ونه نیسی څو ځوان په ټـــول قدرت ،ځوانمردی ،شجا عت اودـ دلاوری سره وکړای شی چی خپـل نظر داجتما عاتو په مخکی دستیـج پرسر په پوره ډول افاده کړی دژبی روانی، نزا کت اودخبرو اداب رعایت کړی اواوریدو نکی یی همیش پـه یادوی.

پدغه ډول مود بی ځایه بیرو پـــر دولو په لنډ ډول بحث وکړ او د هغه علتونه چی ډیر حسا سیــــت ،ژر دردیدل ،غیر نا حقه خوا بدی او باـ لاخره د مصؤ نیت احسا س نه کول اوهمدغه رنګه داجتما عی کید لـو دعملی تاوا نو نه وه معر فی کــړه نو نتیجه داسوه چی ددغه ډول صحنو اوپدیدو سره دتماس په وخت کی باید پرعقل تکیه وکړو، دمنطق څخه کار واخلو وا قعیتو نه درك اودهغو پـه رڼاکی دحق اوبا طل تمیز وکـــړو اوله غیر واقعی صحنو اوپدیدو څخه باید ونه بیر یږو.

پای

ا،ح،س ـ

# په ښوونځیو کې د ورزشي ښوونکو رول

څرنګه چې انسان د خپل عمر تقریبا اوږده موده د ورکتوب‌او ځوانی په دوره کې په درس او سبق ویلو ښوونځیو او مدرسو ته‌په‌تللو سره تیروی نو په همدغه ځای‌کښې بوموږی ماشومان او بیا ځوانان‌د ورزش او سپورت سره آشنایی‌او بلدیت پیدا کوی اود خپلې اساسي وظیفې یعنی درس ویلو په اړخ‌کې‌د ورزشی فعالیتونو او سپورتی‌بیلابیلو لوبوسره علاقه پیدا کوی .

په همدغه وخت کې ددغو وړوکو ښه څارنه ، روزنه او مراقبت‌پکاردی چې‌ددی دندی ترسره کول د ټولو ترمخه د ښوونځیو د ورزش ښوونکو ته‌متوجه کیږی ځکه دهمدغه وخت‌د ورزش او سپورتی تمرینانو او ادمانو په‌وسیله د ځینو هغو هلکانواونجونو جسمانی ناتوانی او نیمګړ تیاوی‌چی ترې یې له مینځه وړل کیږی.

هغه هلکان او نجونی چې دخپل ژوندانه په لومړنی دوره کې‌ښوونځیو ته‌شاملیږی کیدای شی چې دورزشی بیلابیلو حرکاتو، منډو او اخوادی‌خوا ته‌د ځغستلو او راځغستلو په‌وسیله پرځینوورو او کوچنیو ناروغیوبه‌دی غلبه ومومی ځکه د همدغه حرکتونو اومنډو رامنډو وهلو او ځغاستوپه وسیله د هغوی په جسمانی طاقت‌کی زیاتوب راځی اودبدن بیل غړی‌یی‌د همدغه حرکتونو په وسیله چې‌د ښوونځیو په ډګرونو کې‌یې ترسره کوی ستړی کیږی چې ددغه ستړیا دلیری کولو دپاره زیاتی انرژی‌اود کالوری اخستلو ته ضرورت اواړتیا پیدا کوی اود هغه په بیا اخستلو سره یې وجود تقویه او پیاوړی‌کیږی چې وروسته بیا د زیاترو ناروغیو او مکروبونو په مقابل کې مقاومت پیدا کولای شی او هغه فکری‌او جسمانی نیمګړ تیاوی چې ځینې‌یې ورسره مخامخ وی تقویه او غښتلی کیږی .

همدا رنګه په ښوونځیو کې‌د هلکانو او نجونو سپورت او ورزش‌ته پام اړول یوه بله ښیګڼه هم لری‌چی په‌هغوی کې دا روحیه پیاوړی کوی چې څرنګه‌د تپ‌وتلاښ ، زیار اومنډو رامنډو وهلو په وسیله مطلوب‌او ټاکلی شمی تر لاسه او یا ځان‌وز ورسوی یعنی په هغوی کې دهدف دترلاسه کولو روحیه پیاوړی کیږی اوبرسیره پردی یوبل حس هم‌چی‌په دوی کې پیاوړی او روزل کیږی‌هغه دورزشی قانون او ورزشی ټاکلو مقرراتو د احترام اوسر نه غړولو څخه عبارت دی چې همدغه ماشومان دوړکتوب دهمدغه وخت او دوری څخه مقرراتو ته احترام اود قانون‌د ساتلو روحیه پکی پیدا او روزل کیږی چې دا روحیه ورو ورو په‌دوی کې تقویه‌او لا ډیریږی چې‌په‌وروستی پړاو کې د ټولنیزو مقرراتو په‌تامین اومنلو کې مثبت او مؤثر اثرات ښندی .

دبله طرفه په ښوونځیو کښې‌د ورزشی لوبو په کټهلو سره په ماشومانو کې پرنفسی‌باندی د ډاډاوحاکمیت قوه‌هم پیاوړی کیږی اود اعتماد‌حس یی‌غښتلی کیږی همدا وجه ده چې‌په نړیواله سویه دی ټکی ته زیاته پاملرنه شوی ده چې ښوونه او روزنه اوبدنی‌تربیه‌یودبل څخه نه‌بیلیدونکی اړخونه لری او داسی باید ترسره شی چې په یوه وخت کې روح‌او جسم دواړه وروزل شی .

زمونږ په هیواد کې چې‌د جمهوری نیك‌او صالح نظام رامینځ ته شوی‌دی دولت دغوټکو ته پوره پاملرنه‌کړی‌نو ځکه‌یی د ماشومانو او ځوانانو بدنی روزنه د هغوی د ښوونی او تعلیم‌په څنګ کی ځای کړی او پام یې ورته اړولی‌دی . دلته د ښوونځیودورزشی ښوونکو وظیفه ده چې ددغو ټکودپه نظرکی نیولو سره دهلکانو اونجونو دښې او سالمی روزنی په لاره‌کښی داسې تپ‌وتلاښ او هاند وکړی‌چی‌د سبا ورځی افغانی ټولنه دهر ډول ناروغیو څخه خلاصه وی ځکه‌پدغه لارکی ددغو ښوونکو رول او ونډه اخستل دخاص ارزښت درلودونکی دی.

# کندهاری خطاطان...

دکندهار په دفترو کښی دمامورین تر مختلفو د ورو ورو سته تقاعد شوی او اوس دبیکاری ور ځی‌شپی سبا کوی د لیك نمونه یی لاس ته رانغله .

**(۲۷) ملا عبدالقا در سنجی .**

د ملا غلام محی الدین سنجی‌زوی دپلار د لیك په پیروی په شکسته لیك کښی ډیر ماهیرؤ قلمی تحفه سنجی دده په لیك سره تر اوسه پوری له حاجی عبدا لغفور او حاجی بد الشکور کتاب فرو شانو څخه‌سته په ۱۳۲۹ شمسی کال کښی د (۵۰) کالو په عمر وفات او دکند هار په عمومی هدیره کښی ښخ دی.

**(۲۸) علامه شیخ محمد طاهر کند هاری .**

دملا نصرو زوی ؤ‌ېر ته له علمی تبحر څخه د نستعلیق لیك په‌لیکلو کښی ښه ماهرؤ په ۱۳۱۰ کال کی پسله علمی تحصیل څخه له عراقه کند هار ته راغلی او د لته یی‌وډیرو شاګردانو ته علمی فیض رسیدلی‌دی په ۱۳۵۰ کال کی د دماغی اختلال تر اوږده رنځ‌ورو سته‌دعمر پراویاوم کال باندی په هرات کښی مړ اوهلته ښخ شو شعری طبع کی‌هم در لوده دلیك نمونه یی دپښتی پر خلرم مخ وګوری.

**(۲۹) سید حسین (سید)**

سید حسین (سید) د سید مبین زوی تقریبا د۱۳۱۰ قمری کال په حدودو کی په قندهار کښی زوکړی او دلته لوی شوی دی‌د خپل وخت کی دده‌خطا طی شهرت درلودپه‌ثلث اونستعلیق کښی یی زیا ت مهارت ستایل کیده اود استادی په درجه ، خلق ور ته قایل وه په شاعری کی بی‌زوانه طبعه در لوده دذوق نفاست اود اشعارو سلا ست یی زیات ؤ ده اکثره اجتماعی‌اخلاقی مطالب نظمول دی قادر الکلام شا عر خو را ډیر اشعارویلی دی شل کلونه یی پرله‌پسی د قندهار دمطبو عاتو په‌مدیریت کښی کله د مطبعی د منتظم او کله دطلوع افغان د مرستیال‌په حیث، تیر کړل د ۱۳۲۸ شمسی کال دحوت په میاشت په کند هار کښی مړ او پخپله پلار یی هد ره کی ښخ‌کړه‌شو دلیك نمونه یی دوقایی پر خلورم‌مخ وګوری.

**(۳۰) میرزا عبدالودو .**

میرزا عبدالودود دحاجی عبدا لغنی زوی په خطا طی او نقا شی کښی‌د ښه مهارت څښتن ؤ د طلوع افغان داخبار په اداره کی یی تقریب شپ کا له د کاپی‌نویس‌په حیث کار ... فلسفی فکریی درلودی ډیری مبتکری مقالی‌یی‌دطلوع افغان په‌ا خبار کی‌د ع،ل‌په نامه نشر شوی دی په‌قدیمو او عصری علومو کی د ښومعلوماتو خاوندؤ رسمی تحصیلات یی په دوره کښی تر رشدیی پوری رسولی وه په ۱۳۳۵ شمسی کال کښی د۴۵ کالو په عمر مړ او پخپله هدیره کی ښخ دی دلیك نمونه یی د خوشحال خان کلیات دکندهار طبع ده .

**(۳۱) میرزا عبد الو هاب.**

میرزا عبد الوهاب د محمد سرور زوی چې پخوا یی دطلوع افغان په اداره کی دکاپی نویس په حیث‌کار کاوه په نستعلیق ثلث او نسخ‌لیك کی متوسط ؤ تقریبا د (۶۰) کالو په عمر وفات دی.

# ترسیره سهربانه...

د شپې خواته بیابنارته ولاړم او هر هغه ځوک‌چې فکرمې کاوه(گرهام) پیژنی وپو بنتی . خوهیڅچا دی په‌دغه ورځ نه‌ؤ لیدلی . د ډیرو پو بنتنواو پلټنو څخه زهره ترکی‌سوم. وروسته د(بار) پیشخدمت راته وویل :

ـما ستا میړه ولیدی، خو نــــه پوهیږم چې څله داسې پریل حـالؤ لس دقیقې دمخه دلته راغی داســی بی‌ماته کتله‌لکه هیڅ چی‌یی‌په سترگو نه لیدل .

ـکومې خواته ولاړی ؟

ـ فکر کوم د غره لاښ خواتــه رهې ؤ.

زه هم پسی ولاړم . د لاښ څخــه حو گامه لیری می دیوه سړی سایه وبیدل چی‌پریو صخره ناست ؤ.ورالا می کړه او په نامه می‌ورناری کړه . سړی یی هیڅ عکس العمل‌څرگندنه کړ. څو لحظی وروسته را ولاړسو، راغی مخامخ را ته ودریدی .

ډیرډ وهمه پر ځای وچه‌ودریدم‌ځکه هغه سړی گرهام نه‌ؤ څو بلکل‌عجبه مشابهت یی‌د گرهام سره درلودی.تر شونډو لاندی می د هغه پردی سړی څخه عذر وغو بنتی. بدن می‌ریږد واخیستی .

سړی په آرامی را ته وویل :

ـښه داده چی کنبینئی څکه حال دی سم نه دی .

ـږغ یی هم (گرهام) ته ورته ؤ.

ـتا ماته د (گرهام) په نامه‌راناری کړه، آیامقصد دی (گرهام وبستر)ؤ.

ـهو. تاسی هغه پیژنئ؟ آیا در معلومه ده چی هغه چیری وی ؟

ـباید هغه حتما وپیژنم ... څکه زه دهغه وروز (مارك وبستر) یم او زه خپله هم په هغه پسی گرزم .

ـعجبه ده... هغه ما ته نــه وه ویلی چی زه ورور لرم .

ـته څوك یی ؟

ـزه (دایان) ... د هغه ماندینه‌یم

ـد هغه ماندینه عجب ؟ ښه .دا راته ویلای سی چی هغه په (برینډیل سی) کی څه کار کوی ؟

ـموږ د خپلی رخصتی د تیریدو دپاره (برینډیل سی) ته راغلی یو. خو تیره شپه مویو څه ترخوله تیری سره وکړی.تر هغه ورو سته بیامادی نه دی لیدلی. کری‌ورځ پسی‌وگرزیدم

یوڅا ددی ځای پته راکړه. هغه چاچی پته‌را کړی ده هغه‌هم خطا وتلی دی څکه پر تا باندی یی د(گرهام وبستر) گمان کړی دی .

ـ(گرهام) چی تاته تر اوسه دانه وه ویلی چی زه ورور لرم، نو حتما داخبره یی هم درڅخه پټه کړی‌ده چی ماته یی لیکلی وه یو څه پیسی را واستوه .

ـعجبه ده .. زه‌ددی مو ضوع څخه بیخی بی خبره یم. زه تر اوسه نه وم خبره چی دده اقتصادی حا لت دونه خراب دی .

ـ(دایان) دا لومړی وار نه دی‌چی هغه زما څخه د مرستی غو بنتنه‌کوی دهغه تل دغه حال دی تمامه ویځ‌یی دقمار وهونکو او بدو خلکوسره‌سره کار دی. ته خبره یی چی هغه یوار بندی سوی لاهم دی؟

ـیا ، کله مادی خبرو څخه‌خبر وی. زه تر اوسه د هغه په باب پــه ډیرو موضو عاتو ناخبره یم .

ـدایان زه نه غواړم تا خواشینی کړم څو لازمه گڼم چی ځینی حقایق وتاته ووایم . زموږ مور تل دهغه څخه په عذاب وه. موږ چی‌هلکان ؤ پلار مو مړ سو، (گرهام) چی اوه‌لس کلن سو کور یی راپر ینبنود.

ما او مور یوازی ژوند کاوه، ډیر عمر دهغه د ژوند او مرگ څخه بی خبره ؤ...

تر څو چی یوه ورځ د هغه یو خط ماته را ورسیدی او په هغه کی یی زما څخه د پیسو غو بنتنه کړی وه. ده په یوه شرکت کی کار کاوه او دهغه شرکت څخه یی څه پیســـی اختلاس کړی وی .

اوس می مور هم مړه ده او فقط هغه وخت زه د (گرهام) پـه حـــال خبریږم چی دی مفلیسه سی نوماته خط را واستوی .

څو څله می هڅه کړی ده چی دی تشویق کړم چی راسی زما ســـره وهستیږی .

زه په (بیر منگام)کی یو کوچنی ورکشاپ لرم. مگر دی وایی زه نه غواړم چی لاسونه می غوړ او چټــل سی. نو بی فایدی په هغه پسی‌گرزم. دا وار چی یی خط راته نو شته کړی ؤداسی څنی(معلو میده‌چی ډیرمفلیسه دی. زما څخه غو بنتنه کړی وه چی

سل‌پونډه (برینډیل‌سی) ته‌راواستوه نوما نیت وکی چی په خپله راسم او دی د نژدی وونیم .

ټوله ورځ می پسته خانی سره‌قدم واهه چی گوندی دی‌ووینم څو نه‌می ولیدی .

زه مجبوره یم چی دوی دری‌ورځی نوری دده دلیدو دپاره دلته پاته‌سم. اما ته‌باید څه وکړی؟ زه‌وایم ښه‌به داوی چی خپل کور ته ولاړه سی.ته زما دورو‌ره سره په عذابیږی هغــه ستا لیاقت نه لری... زما خبره په غوږ کی ونیسه .

ـهغه ماته احتیاج دی ... څکه‌زه یی ښځه یم .

ـ(دایان) ستا آینده خرابه ده، که تادهغه سره واده هم کړی وی،قانونی نه دی .

څکه چی هغه بله ماندینه لری.

ـ یا، دا څه وایی !

سر می سره وڅرخیدی نژدی ؤ چی چپه سم .

ـآرامه کښینه، څو اوږدی ساوی وکاږه دا دونه خبره نه ده .

ـدا به حقیقت نه لری چی هغه بله ښځه لری که‌یی بله‌ښځه درلودای نو زما سره یی څنگه واده کاوه.

ـدبده مرغه دا یو حقیقت دی.هغه خلور کاله د مخه‌واده کړی دی او څرنگه چی په خبر یم تر اوسه یی هغه نه ده طلاقه کړی. هغه بله ښځه یی په (بیرمنگام) کی دیوه هوټـــل گار سونه (پیشخدمته) ده. هغې به هم تل د (گرهام) سره شر اودعوا کول. کله چی د بند یخانی خلاص‌سو. ماند ینی یی دی ایله کی .

دونه گنسه وم چی د خبرو توان می نه درلوی .

(مارك) تر یوی شیبی چوپتیـــا ورو سته راته وویل :

ـکه (گرهام) په ربښتیاته ایله‌کړی یی نودی نخش راو ستلی دی او بخت دی یا ری‌در سره کړی ده .کو ښښ وکړه چی هیر یی کړی ...

ـاما دا یو ساده اوآسانه کارنه‌دی څکه زه د هغه څخه امیندواره یم .

په عاجزی یی راته وویل :

ـڅونه ناوړه کار سوی دی؟

ـما تر اوسه دونه فرصت نه دی پیدا کړی چی هغه ددی موضوع‌څخه خبر کړم .

ما فکر کاوه‌چی ددی خبری پــه اوریدو سره ښایی هغه خوابدی‌سی.

ـپوره صحیح فکر دی کړی دی.

وروسته می (مارك) ته د هغو د دوو تنو څوانانو دراتگ کیسه وکړه

چی‌سهار کورته راغلی وه. تر یوی اوږدی چوپتیا وروسته یی راتــــه وویل:

ـفکر کوم د هوښیاری کار دا دی چی زه کورته در سره ولاړ سم .

ـتشکر .

موږ ویل مارك به راغلی وی خــــو هغه درك نه ؤ اما د(مارك) یو خوهکی پخی کړی او په بی اشتهایی مــــو وخوړی .

موږچی ډوډی وخوړه د باندی دیو چاد گامو کړپی موتر غوږ سو.

وروسته دروازه په زور زور وټکیده او (جیك) او (راجر) خونی ته راداحل سول .

د (جیك) سترگی چی پر (مارك) ولگیدی وی ویل :

ـښه ، ښه، اوس خپل ملگری‌هم نه پیژنی ؟

ښوری به نه راڅه را سره ...

ما ناری کړی :

ـدا (گرهام) نه دی، دا دهغه‌ورور (مارك) دی .

ـستا مکر څه فایده‌نه کوی دا چی ستا میړه دی نه حق لری چی په یوه پلمه یی را څخه خلاص کړی.

موږ یی کم نه پیژنو چی (گرهام)دی موږ اوس دی بیایو چی زموږ تاوان راکړی. ته خبره یی چی ده موږ به څه بلا اخته کړی یو .

ورو سته یی د (مارك) د کمیسه غاړی ته ور حمله کړه. (مارك) یوښه جانانه بکس‌د (جیك) څگرته‌ور حواله کی او هغه پر خو له خوله کیدی پر میز و مبنتی. (راجر) د (مارك)خواته ور په هوا سو، خو ،جیك، په داسی حال کی چی سایی پکښی پیچلی وه په زحمت یی وویل :

(راجر) صبر وکړه، رشتیا دغــه سړی (گرهام) نه دی .

(مارك) ورته وویل :

په رشتیا زه (گرهام) نه‌یم،غواړم وپوهیږم چی تاسی د حق دغوښتنی دپاره دلته راغلی یاست؟

،راجر، شاو خوا وکتل اوویـــی ویل:

ـ رشتیا خبره داده چی څه موده پخوا (گرهام) موږ دوه خطا ایستو. کیسه داسی وه چی ده ویل راځی د فلانی دوکان څخه راډیو گانی غلاکړو. زموږ ساتنه دده وظیفه وه. موږ چی راډیو گانی را واخیستی. دده سترگی پر پولیس ونبنتی او وتښتیدی او پولیس موږ بالفعل ونیولو زندان ته

**نور په ٣٤ مخکی**

# په افغانستان کی...

په‌لکښت دفعا لیت له پاره چمتــو کیږی.

دکند هار دسپنسینو ټکرا نــو دفابر یکی ماشین آلات چی دورکښلـ ونوداوډلو په بیلابیلو خانګو، رنګ آمیزی، حلاجی او سپنسی تاوولــو په‌خانګو به سمبالــه‌وی دشوروی‌اتحاد دتخماش اکسپورت اود آلمان دفدـ رالی جمهوریت‌دیونین‌ماتکس کمپنیو خخه پیرودل کیږی او شپږ زره دوه شپیته ټنه به‌په کار مصروف کړی.

**۲ــ دکند هار دوړینو ټکرا نــو فابریکه**

**دافابریکه چی داووه کلن پلان په چوکاټ کی دروان کال په وروستیو شپو ورځو کی به فعا لیت‌پیل‌وکړی**

اته‌اعشاریه پنځه اتیا میلیو نه ډالره‌او ویشت عشاریه دری میلیو نه افغا نیی لګښت‌لری. ددغی فابریکی داړتیاوړ ودانیو دجوړولو کار همدا اوس‌دودان دشرکت له خوا دسپنسینو ټکرا نــو دفابریکی‌ په‌خنګ کی په‌بیړه‌روان‌دی‌چی تخنیکی او ماشینیری چاری یی‌دآلمان داتحادی جمهوریت دکانزر ټکســـس کمپنی له‌خوا پرمخ بیولی کیږی.دغه فابریکه به‌چی دوه سوه ټنه دکــار له‌پاره وزجذب کړی دکاله شپږسوه زره‌متره وړین ټکراودغالیو اود لــو ښاره دری سوه ټنه وړین تار تولید کړی.

دکند هار ولایت دنساجیو ددی‌دوو نویو فابریکو له‌پاره‌لاداوسه دموفقیت اټکل کولای شو چی دلایل به یی‌په لاندی ډول وړاندی کړو:

**۱ــ اومه مواد:**

دکند هار دسپنسینو ټکرانو دفاـ بریکی دضرورت وړ پنبه په خپله‌پــه کندهار او ور څیرمه ولایاتو (هلمند ارزګان) کی‌په پوره اندازه تر لاســه کیدای شی. ځکه دغه ولایات پــه هیواد کی دپنبی دحا صلاتو له پلوه ښه‌ه وقعیت لری. پوره ډاډ دی چــی په‌را تلونکو کلونو کی به داصـــلاح شوو تخمونو، دکرنی دآفا تو ضـــد درملو او کیمیاوی سری په استعماـ لولو سره په نوموړو ولایاتو کـــی دپنبی حاصلات نور هم پسی زیــات شی. داوه کلن پر مختیایی پـــلان اټکلونه دا زیری را کوی چی‌دپلان تروروستی کال پوری به‌د هیواددپنبی دحاصلاتو اندازه دری سوه پنځوس زره ټنو ته لوړه شی (په‌داسی حال‌کی چی‌اوس ترپو سلو اویاا زره ټنه تــه اوړی) چی‌په دی زیاتون کی‌به‌دکندـ هار، هلمند او ارزګان ولایات هــم ښه ونډه واخلی. دلته دا خبره‌دیادونو وړه‌چی پنبه مخکی له‌دی چی‌دنساجی فابریکی ته ولیږله شی بایـــــد دحلاجی دمرحلی خخه تیر سی لــه نیکه مرغه نږدی دوی میا شتی‌دمخه په‌کرشک کی دپنبی دحلاجی‌او انړی کولو دیوی فابر یکی دجوړو نو کار پیل‌شو چی دروا ن‌ډال په اړ اخرو کی‌به‌په امتحانی توګه پیل وکــړی. دافابر یکه به‌د کند هار دسپنسینــو ټکرانو دفابریکی داومو موادو دبرابر ولوپه‌برخه کی دیادولو وړ برخــه واخلی سر بیره پردی دکند هاردنخی نساجی فابریکه په‌خپله هم دحلاجــی په‌دستګاه سمباله جوړیږی.

دکند هار دوړینو ټکرانودفابریکی اومه مواد وړی هم په هیواد کی دنه مخصوصا په خپله دکند هاراوارزګان په‌ولایاتو کی تر لاسه کیدای شی.چی داپه خپل وار دغی‌نوی‌فا بر یکی‌په بریالیتوب کی لوی لاس لری. لــه نیکه مرغه اوس‌ـ اوس په کند هار کی دوړی‌پریمنځلویوه سمباله‌دستګاه شته چی‌په خلیرویشتو ساعتو کـــی یوزر اودوه سوه ټنه وړی پا کــی پریمنځلای شی. سر بیره پردی‌ښایی چی‌په دغه فابریکه کی دلومړی درجه وړین ټکر دتولید له‌پاره یوه اندازه لومړی سورت وړی چی ښه نـــازک، اواوږد الیاف ولری دبهر خخه‌راوارد شی.

**۲ــ تخنیکی پرسونل:**

داخو یوه ښکاره خبره ده چــی **ماهر کار ګران او روزل سوی فنی** اواداری کدر دیوی فابر یکی پـــه بریا لیتوب کی لوی لاس لری‌اوښایی چی‌د پلان جوړولو دلومړی سره هغه ته‌پوره پاملرنه وشی. نه نیکه مرغه دهیواد دصنا یعو په سکتور کـــی دنساجی صنعت دنورو صنعتـــی تولیداتو په‌پرتله‌نسبتا ښه پر مختګ کړی دی اوپه زرګونو تنه افغا نــی خوانانو ته‌یی دکار زمینه‌برابره کړی ده. دکندهار دسپنسینو ټکرا نـــو دفابریکی ماهر پر سونل دبرا برولو له‌پاره دوه امکانه موجود دی، لومړی داچی‌په مرله اوسه به دهیواددنساجیو په‌فابر یکو کی یومحدود شمیراضافی کارګران په‌کار وګومارل شی خـــو دکندهار دفابریکی تر بشپړ یــــدو پوری په مربوطه چارو کی ښه مهارت ترلاسه کړی او هغه وخت بیا دکار داستادانو په صفت دنورو نیمه‌ماهرو اوعادی کار ګرانو ښه سر پر ستــی کولی‌شـ ی. که‌څه هم چی دا ډلـــه کار ګران به‌اوس بی‌له نو لیـــدی فعالیت خخه معاش اخلی خو یقینـــا به‌د کندهار دسپنسینو ټکرانو پــه فابریکه کی ددوی مولدیت ددی لګښت په‌پرتله خورا لوړ وی.

بل امکان دادی چی‌د فابریکـــی دودانیو دبشپړیدو او ما شین آلاتو دتصبولو خخه وروسته په دهیـــواد دنساجیو دنور فابر یکو خخه یـــو شمیر ماهر کارګران دغی فا بریکی ته‌دکا ر داستادا نو په توګه ولیږل شی. دنیمه ماهرو او عادی‌کارګرانو دپیدا کولوپه برخه کی خو هیڅ‌ستوـ نزی نشته ځکه همدا اوس، اوســـ په‌کند هار او نورو ورڅیرمه ولایاتو پټی او ښکاره بیکاری شته دیــــر داسی کسان چی دکار فعاله قوه‌بلل کیږی په‌پټه او ښکاره توګه‌دبیکاری سره لاس اوګریوان‌دی پټه بیکا ری دبیکاری دهولو نو په‌لړ کی یوه‌اقتصاـ دی‌اصطلاح ده. دا بیکاری په‌ستر کو نه‌لیدل کیږی یعنی محسو سه نه‌ده په‌خپل ټول قوت سره وجود لری.د خوپه ټولو وروسته پاتی هیوادو کی مثال په توګه‌دکند هار دیوه هکتـــار ځمکی خخه یوتن بزګر ښه پوره‌ګټه اخیستلای شی او ټوله چاری یی پــه یوازی توګه سرته رسولای شی. مګر په‌دی ځمکه بانډی دری. څلور تنه‌په کار بوخت وی په داسی حال کی‌چی باید یوتن وی. دا اضافی کســـان د اقتصاد له نظره بیکاره ګڼل کیږی.

په همدی توګه دکند هاردوړینــو ټکرانو دفابر یکی دماهر پر سونـــل په‌برخه کی دکند هار او کابل دوړی

**نور په (۳۵) مخکی**

نور په (۳۵) مخکی



**دوړینو ټوکرانو اویلو دفابر یکی‌کارچی په بیړه روان دی.**

دجګدیش عکاسی

دپرویز لیکنه او څیړنه

# اډیسن او دبرښنا اختراع




دپرویز لیکنه

ر برښنا چې نن ورځ بشر د هغه څخه د خپل کورو نواو ښا رونو په تنویر اویاپه حرارتي آلاتو موټرونو تیلګراف، تیلفون ،را ډیو تلویزیون او نورو بر قي ډول ډول آلا تو دپاره کاز ور څني اخلي په لو مړیو وختو کې دیوه تخریب کو ونکې عا مـل په حیث دهغه عصر خلکو ته پیژندل

سوې وه چې په‌هیڅ ډول سره‌پوهانو دهغې په باره کې دمطا لعې اواختراع دپاره زړو نه نه سوه ښه کو لای‌خو وروسته دغه تخر یب کوو نکې‌عا مل دبشر دپاره دیو لوی خد متګار ځای اشغال کړ.

دبر ښنا اختراع په دو نه سر سام آوره قدرت سره چې نن یې موږ په سنتر ګو وینو په هغه عصر کې‌دونه آسانه کار نه‌ؤ ځکه دډیرو پو هانو هڅې دبر ښنا داختراع اود هغه‌ـ څخه دکار اخیستلو په غر ض‌ناکامه یاته شوې که څه‌هم په ۱۸۷۹ م کال کې ولتها ایټا لوی فزیکدان د خپلـو ازمو ینو په وسیله دلمړی ځل دپاره برقي بطری اختراع کړه او ثابته‌یې کړه چې که چیرې په‌یو لو ښي کې دګوګړو تیزاب وا چول شي اوبیادوه مختلف فلزي الکترو دو نه دتیزابو په منځ کې کښیښنو دل شي دیوهادي په‌واسطه ددوا ړو لوحو په وصلولو سره یو بر قي جر یا ن‌حا صلیـږي اما نو مو ړی عا لم نه پو هیده چې‌د حاصل شوي بر قي جر یا ن څخـه څه رنګه‌اویه‌څه‌مقصد کار وا خلی‌او داپه دې نسبت چې دنو موړي فزیك دان په وخت‌کې بر قي ګرو پ‌اختراع شوي نه ؤاو چ‌ا د هغه داختراع‌او جوړ ولو په باب معلو مات نه‌در لوده ترونتها دمخه یعنې په ۱۸٦۷م کال کې‌یو انګلیسي عا لم چې ما یکـــل فرا ډې نو میده د خپلو ډیرو علمي از میښتو نو په وا سطه دبر ښناد تولید عمو مي‌تیوري کشف کړه یعنې نوموړي عا لم ثابته کړه چې که‌چیرې دبرق یو هادي دسا حې په مخا لف سمت کې په حر کت راو ړل سي دمقنا طیسي سا حې د قطع کیدوپه اثر د محرك هادي په منځ کې برښنا تو لید یږي دفرا ډې دغه تیو ري‌تر نن ورځې پورې دبشر په‌خدمت‌کې ده چې په ټو له نړۍ کې دبر ښنـا دتو لید په غر ض د همدې تیوري څخه کار اخیستل کیږي او ستـې بر قي جنر یترونه ټول دهمدې‌تیوري پراسا س جوړ سوي دي.

وروسته تو ماس‌الواډ یسن امریکایي عالم دبرښنا څخه دګټې اخیستلوپه غر ض په یو لړ علمي تحقیقا تولاس پورې کړ اود ولتهااو فراډې اختراعاتو ته‌یې پرا ختیا ور کړه.

اډیسن چې دبر ښنا له قدر ت‌څخه دټنو پر دامکان په فکر شو نود یو شمیر لیکوا لو سخت دانتقاد مورد وګر ځید تر دې انده چې لیو نـې جادو ګر او په داسې نورو نوموياد شو خونو موړی عا لم هیڅ وخت‌خپل زړه ته‌د نا امیدی لاز ور نه کړه او همیشه به یې خلکو ته دا سی‌ویل چې یوه ورځ به‌د بخار قوه دبر ښنا په قوه بد له کړم اود بر ښنا په‌څو کا رخانو به خپل‌کور ښاراو‌کار‌خانې روښانه کړم اود یو کو چنی سویچ په‌وهلو به‌یوه لویه خو نه رو ښانه کړم.

اډیسن دوې نه وعده ورکـړه چې خپل دغه تصمیم به‌په دوو کالو کې رښتیا کړي.

په ۱۸٦۹م کال داکتو بر دمیاشتې په‌یوه شپه کې په داسې حال کې‌چې خپل مېز ته خوا شیینـې نا ستؤ ناڅاپه دخپل کالیو یوې تنې ته چې شکیدلې او په‌ور غوی کې یې‌لویدلې پام شو دیوی شیبې دپاره هغه‌تار ته‌چې په تنې پا ندې مو ښتيؤ په فکر کې شو څو یونوی فکر ور پیدا شو وروسته له ځایه پورته شـو اوخپل لابرا توار ته‌ولاړ.په‌لابراتوار کې‌څو کار بو نیزه شوی تارو نه‌یې په‌یو داسې بو تل کې چې هوا یکې نه‌وه کښیښنو دل نو موړي تارو نه وروسته له هغه پنځه سا عته‌په‌بوتل کې ایښنو دل شوی وه ټول ورژیدل خود ټولو څخه یوکار بو نیزه شوی تار روغ پا ته شوی ؤ اډیسن تارپه یو سیښنی ټیوب کې ننه ایستی‌اود ولتها دبطری په مر سته یې‌د بر ښنا جر یا ن دهغه څخه تیر کړل کله چې بر ښنا جر یان ومو ند په ټیوب کې یوژړ بخو نه رڼا وبر یښیده چـې اډیسن ته یې دما یو سې ددنیانـه نجات ور کړنو موړي تار ترڅلویښتو ساعتو پوري رو ښنا نه پاته شـو اډیسن دهمد غې اختراع لمنه پراخه کړه څو پس له لږو مودو څخه‌دلو-مړي ځل له پاره په ۱۸۸۳م کال‌کې دبر ښنا لو مړنی څراغ یې جوړکړ اوپه خپله‌دغه‌اختراع‌سره یې دلومړي ځل له‌پاره خپله خو نه دبر ښنا دقد رت په مر سته روښنا نه کړه.

تر دې اختراع ورو سته خلکـو دبر ښنا د قدر ت څخه دګټې‌اخیستو په منظور په‌هلو ځلو پیل وکړ اوتر لږ وخت وروسته دما یکل فرا ډې دذکر شوي تیوري څخه په‌استفاده کولو سره‌د بر ښنا جنر یټرو نه‌چې دبخار په قوه سره یې کار کا وه منځ ته را غله چې ددې ما شینوپه منځ ته را تلو سره کورو نه اوښارو نه‌دبر ښنا دقوې پو سیله رو ښانه شول اود اډیسن خبره علمي ډګر ته راووتل.



دهر شي دزختنه به مو لید لی‌وی‌خوتر اوسه به‌مو دختکی در ختنه نه‌وی لیدلی دایی هم دختکی درخته چی‌به زاهدان کی پیدا کیږی.



ژباړه

# دمنی غذائی ارزښت

منه یو له هغو شفا بخشو میوه‌جاتو له ډلی څخه ده چی دکال په ټولو موسمو کی پیدا کیږی دمنی ویټامینو نه دبدن ټول اړتیا وی پوره کوی څکه په منی کی کانی مواد او سپنه بروم، ارسینک، اسید فورمیك او اسید فاسفوریك زیات شته.

په‌منه کی‌قندی مواداوکاربوهایدرایټ چی دګلوکوز او سلولوز څخه عبارت دی هم موندل کیږی دغه میوه دویټامین، آ، ویټامین، بی ویټامین بی دوه اوویټامین پی‌پی سرشاره منبع ده یعنی منی په‌سلو کی پنځه اویا ویټامین آ پنځه لس ویټامین‌بی او شل فیصده ویټامین سی لری دمنی طبی میوه چی دغذایی قدرت په درلودلو سره اعصاب او دبدن نورو غړو ته غذاورکوی‌د اسید استریك په نسبت سره‌غذایی مواد هضم اود بدن زهر یه موادلری کوی نوځکه دمنی خوړل داینی روماتیزم اود شکری په ناروغی‌اخته کسانو ته ضرور ری دی.

دمنی خوږه میوه چی دچا غبنت دناروغی مخه نیسی دهاضمی جهاز اختلا لات معدوی‌او مجاری ناروغی ادرار دسینی دردو نه اوداسهال‌دناروغیو مهم درمان شمیرل کیږی په منه کی پوتاشیم شته وا لی‌د بدن دقدرت دسلامتیا او فعالیتو نود باره زیاته اغیزه لری څکه دمنی خوړل دبدن حرارت کمږی اودتبی په لیری کولو سره دبدن غړی په‌کار اچوی او دهم دخپل معدنی ما لګــــو په ذریعه دغذا البومین او نسوج رفع اود سږی دنا روغیو مخــــه نیسی

دنړی زیاتره پوهان عقیده لری چی‌د منی بوی ل دماغ تازه اوکسالت لیری کوی‌او خوړل یی اشتهــــا زاولی خو که چیری پاخه وخوړل شی نو ټوخی او جلدی امراض‌تداوی کوی همدا راز څرنګه چی په دغه‌میوه کی دقندی موادو اندازه لږ ده‌نوهغو کسانو ته چی دشکری په نا رو غی اخته وی همد منی دخوړلو اجازه ورکړه سوی ده.

منه دبی خوبی بنه دواده اوهمد خولی دبوی په لیری کولو کی‌موثر نقش لری په منه کی دفاسفورس شته وا لی داعصابو سلسله تحریك اوقوی کوی خصوصا دحافظی‌دبنه والی دپاره ډیره ګټه لری.

دمنی خوږه میوه دکو چنیا نــود بدن په وده اونمو کی ډیر تا ثیــــر لری څکه دمنی ـ په دکو چنیا نـــو دمعدی په ضد عفو نی کو لو سره‌د کو چنیا نو د‌اسهال دنارو غی مخه نیسی اود ځیګر اعصاب او معدی‌په قوی کو لو سره ما شوم ته سا لمه رو غتیا ور په برخه کوی.

دمنی او به دحشرا تو او خزندو دزهر په خنثی کو لو کی هم مهــم رول لری یعنی دبد ن دحرا رت په کمو لو سره درد آراموی.

دمنی پو ست همد بنه غذا یــــی قدر ت در لودو نکی ده په همدی خا طر دی چی دمنی دسپینو لوڅخه باید ډډه وشی اود پو ست ســره وخوړل شی څکه دمنی پو ست‌پــه خپل غذا یی قد رت سره دغذا په هضمو لو کی ډیره مر سته کوی خو په دی شر ط چی‌د منی خو ړ لــو په‌وخت کی هغه بنه وژول سی.

که چیری دمنی پو ست میده سی اودمر با په جوړ ولو کی د هغه څخه کار وا خیستل شی نو ډیر ګټــور ثا بتیږی.

ددغی میوی خو ړل یوا زی ځوا‌نانو ته‌نه بلکه ټولو زړو او سپین‌ږیرو ته ګټور دی څکه دغه میوه‌دبدن دنارو غیو په لیری کو لو سره‌بدن ته‌سا لمه رو غتیا ورپه بر خه‌کوی اود نارو غیو دشره څخه یی‌په‌امان سا تی په دی خاطر هغه کسا ن چی‌د خپلی رو غتیا او سلا متیا سره‌مینه لری باید هر وخت دمنی‌د غذا یی ارزښتو نو څخه په‌استفا ده کولو سره خپله رو غتیا تا مین کړی‌اود نارو غیو څخه دی ځان وژغوری



●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●●

داسپی چی دلته یی عکس وینی کاڅه هم دسپی د چیچی ګمان بر کیږی خودا دنړی ډیرو ړو کی‌سپی دی تاسی دانسان دلاس په‌تناسب دده کو چنیوا لی در ك کو لای شی

داسپی لکه نور سپیان ډیـــر باهو بنه اوچالاکه دی دیو کوراو باغ په سا تنه کی تر نوروسپیانو کم نه‌دی نسل یی یوازی په‌میکزیك کی پیدا کیږی.




**فتح محمد مفتون**

## نوی رنځ

نن چی تاکړی سترګی توری
په زخمو سوی مالګی پوری
د عشا قو په ګوګل کښــــی
بلوی د غم اورونه
ای د سرو سترګو خونکاری
واوره زما د سوز چیغاری
هیڅ دی رحم پر ما نشته
چی لیکم دغم شعرو نـــه
همیشه ستا د ستمـــه
دزړه وینی تو یومه
پر کاغذ قطا رومـــه
دزخمی زړه پر هارونه
نن‌می سری اوښکی بهیږی
په‌هیڅ توګه نه دریږی
د دریاب سره سیالی کړی
هره خوا وهی مو جونه
داچی وایمه افلاکی
دزړه سرمی سو تناکی
دا اثر ستا د جفا دی
چی‌تر خولی باسم دودونه
ته‌اخته پخپل سینګار شوی
که زماد زړه په ښکار شوی
دغه زړه می بیرته راکړه
کړم د لبو پر هیزونه
تاپرمخ زلفی خوری کړی
پری دی زما دزړه پردی کړی
نوی رنځ او نوی مینه مبارك دی شه مفتونه

## بادوم خاوری پرسر

یارب العلمینه که پرما وکـــی نظر
ناری‌وهم‌په زوره بادوم خاوری پر سر
شپه د جمعی وه چی می ولیدی‌په‌خواب
زما زړه‌دی‌راشخه یووی زه‌په ځان ناځوم خبر
یارب العلمینه زمونږ یار راشخـــه‌لیری
خاونده‌قوت‌راکړی چی زه ور شمه پر سر
په اور د محبت کی دی کبــــاب‌کړمه جانانه.
داهم نا علاجی‌ده چی زه ګرځمه پر ډاکتـــر
عبدالنبی اړ ندی نه ومی اونــــه‌مستی ته
بی‌میومستانه‌دی نن په عشق د خپل دلبـــر
**عبدالنبی کدا**

**پوهاند عبدالشکور رشاد**

## انار ګل

راغلی په نڅا دژوند وږمی، خاندی‌ګلونه بیا
ویښ‌کړه پسرلی‌دناز په خوب بیده ښاخونه بیا
پوری سری لمبی کړلی په درختودانارګلو
کان دحسن وچاود، رابرڅیر شوه سره لا لونه بیـــا
بیا دباغ نسیم د غوټی شونــــډوته‌خوله وروړی
ایسته‌یی‌لـــه‌مخه دښایست کړه نقابو نه‌بیـــا
مست یی بلبلان کړه ،په چیغاراوپه‌نارو شوله
توی‌کړه‌شنوجا موته انار ګل‌سره شرابونه بیا
پورته شوی وړانګی د ارغنداو،دآسمان څنډو ته
ګوری،داچـــی‌ښکاری دشفق خونی موجونه‌بیا
باد چی پر را والوزی، سری‌څانګی‌په‌ټالو نو شی
ته‌به واڅپی‌وهی‌دسرو وینو رو دونه بیـــــا

## ستا تعریف

دزړه‌سرمی یاروهلی په خنجردی
درواغ‌ندی زماله‌حاله خدای‌خبردی
هیڅ‌اثر دناصحانو به‌پر نشــــی
په‌بل‌نه‌کی ناچاری‌د عشق اثردی
پاچهان دادو بیداد دسړی ګوری
زماخودادو بیدادواړه خپل دلبردی
په‌مجازکی حقیقت راته حاصل‌شو
دجانان‌شونډی فقطحوض کوثردی
شیخ‌ثانی‌صنعان یی په‌یوه‌نګاه‌تالاکی
ستادمخ‌تعریف‌هرځای کیږی‌چی‌لمردی
په وطن کی تر مابل ناجوړه‌نشته
ای‌طبیبه‌چی‌ته‌ځی دامی ضرر دی
دسرو شونډواوردی زماپه‌زړه‌کی‌بل‌کی
نا علاج‌یـم‌اوس می تاخت پر بحرو بر دی
میریحی‌دی بیا صحت ته امیـــدنکړی
چی‌دخیال‌دلبریی ولاړی لوی سفر دی .
**ملا میر یحیی**



دمحمدجان ، فنا، اثر

**۳۱ـ داوښکو پیاله**

۴

ته چی می ولیدی زما به ستر گو کی او ښکی دنهی شوی تارا نــه لاسونه چاپیر کړل زمایه او ښکنوسترگو دی شو نهی کیښو دی‌اوزما ستر گی دی مچی کړی خو زما او ښکی لاپسی زیا تی شوی، نور می ستر گی مه ښکلوه اوزما او ښکـی‌دخپلو شونډو په‌پیالو کی مه ټولوه پری می ږده چی وژاړم او خپلـــی‌اوښکی دشعر په قدمو نو کی تویی کړم.

**۳۲ـ سینګار:**

• په هنداره کی دی ستر گی توری‌غومبوری سری، پاپه کاږه زلفی‌شانه اوپه‌شو نډو دی اوږ پوری کړی ما‌ته‌دی‌په خندا وکتل اوودی ویل‌چی‌زما سینګار ښکلی دی که ستا شعر؟خو کله چی دی شو نهی زماد شعر په‌شو نډو کیښو دی او مخ دی زمادشعر پر مخ وسو لاوه ستا سینګار بی‌دوله شوی و خوستا دښکلی جمال‌نورلا تر اوسه پوری زماد خیا لـی شعر په هنداره کی ځلیږی.

**۳۳ـ اور اواوبه:**

ته می دسر پوری ولاړه وی اوماخپل شعر لیکه. ناڅاپه زمادشعـر په پاڼه کی ستا یوه او ښکه وڅڅیده‌اوزه پوه شوم چی زما ددرد نــاك شعر سوزونو ستا په زړه کی‌اوږونه‌بل کړی دی.۳۰

**۳٤ـخط :**

داد ستا ویښتان ربول او ستــاوسیمان .زما پر مخ لګید ل دادی‌زه هغه نغمی چی ستاد زلفو خو شبویو‌ناروتو زمایر مخ ولیکل د خپل شعر پرمخ لیکم.

**۳۵ـ تاویزو نه:**

کله چی ما وویل زه خو نور دتل‌دپاره ستایم، تاومنله اود خپلــی غاړی زوړ تاویز دی راکړ چی وی‌شکوم تاویز می وشکلا وه او خلا ص می‌کړ. په ریښتیا یو څو توتی‌شکیدلی کاغذو نه په کی و، چی دکا غــذ توتی می سره یو ځای کړی زماخپل‌شعر ورته جوړ شو چی لیکلی می‌وو زما شعرو ته مه شکوه چی یو وخت‌به‌د پیغلو دغاړی تاویزو نه شی.

کندهار

## ښکلی لنډۍ

زړه می په هغه گل مین دی
چی‌بوراگان‌یی په‌باغچو کی لټوینه

جانانه لاس د وصال راکه
چی‌به‌دریاب‌دبیلتانه کی ولویدمه

زماشیرین جانان را پریږده
بیلتونه‌سوال دعاجزی‌درته کومه

خندا خو ستا سره مزه‌کـا
ما ته پرا ته دی‌به خولی ځولی‌غمونه

زما او ستا لیونی مینــه
ترمنځ‌موچاوکړه دصبر تاویزونه

ای مځامځ دیواله وران شی
تابناه‌کړی توری‌ستر گی شنه‌خالونه

مینه اول د مستی کار دی
بیاسورانګاروی سوزوی دزړه‌رګونه

په سر کی ستر گی گناه گاری
زړه‌چه‌مین شی‌ستر گی خه‌گناه‌لرینه

زما جانانه مسافر شوی
ته چی راځی‌باغ به خزان وهلی وینه

پرون خودامالی ژوندی وی
نن‌دی‌په‌قبر بلبلان ناری وهینه

خمکی دخدای روی می دروړی
چه‌خاوری‌نکړی‌د جانان‌سپین‌مړو ندونه

جانانه ته خوشحاله اوسی
که‌زه‌اتول‌عمر په‌غم‌وی تیر به شینه

جانانه خومره بی وفا شوی
چه‌می‌له‌دره‌بینوا شړی مینه

زما آخره لنډی دا ده
خدای دی‌پوره‌کړی دمینو آرمانونه



دسینما دنړی ښکلی لو بغاړی «برژیت باردو» چی دسکسی بم نوم یی گټلی دی.

دع ك انتخاب

# نر سپړه مهربانه...

یی ژاستو لو.موږ تمامه موږه پهزندان کی په دی چرت کی ؤچی کله بـهٔ بنده خلاص سو چی دده حسابوږ تصفیه کړو .

کله چی دوی دوه دځونی ووتـل ...به عا جزی (مارك) ته وکتل. هغه په یوه نیولی آواز راته وویل :

ـموږ باید په هر ډول چی وی . (گرهام) پیدا کړو .

سبا په وختی هغه ځای‌ته ولاړسو. (مارك) پُه یوه دوپټه کی پر خمکه بیده سو. سبا تر چایو خوړلـــو وروسته ښار ته ولاړو او موټر می په داسی ځای کی ودراوه‌چی پستهـ خانه موټر نظر لاندی وه. څو دقیقی لانه وی تیری سوی چی یو تورموټر زموږ داړخه‌تیر سو. ،مارك،سمدستی راته وویل :

ـدا یان ښو رمه خوره ، جیك او راجر هغه دی تیر سوه. ښه سو ویی نه‌لیدو .موږ غوښته چی دبیغمـــی شکر وکاږو مچی مارك اشاره وکړه:

ـهغه دی گرهام ته دلته کښینه‌زه به ورسم دهغه سره به خبری وکړم. گرهام دیوی مغازی څه راووتی..

کله چی یی مارك ولیدی ځای پر ځای میخ سو .

وروستهدواړه دموټر خوا تهراغلل گرهام دموټر دشا په سیټ کښــــی کښینسستی ستر گی یی کښته اچولی وی خو په شونډو کی یی کراز وویل:

ـدایان بخښنه غواړم .

غو ښته می چی د گرهام څخـــه پو ښتنی پیل کړم مگر مارك راتـه وویل چی اوس ددی خبرو وخت نه دی. اوگرهام تهیی وویل (سر کښته که چی څوك دی ونه وینی).

مارك په داسی حال کی چی‌هرواز یی شاته کتل موټر یی یوه گوښـــه سړك ته وگرزاوه نو یی مخؤ گرهام ته ور واړ اوه :

ښه اوس نو حال ووایه ؟

ـکه دی هغه ټاکلی مبلغ پیسی را استولی وای اوس به دلته نه‌وای.

ـښه نو، دایان دی څه کول ؟

گرهام سر کښته واچوی او ورته یی وویل .

ـفکر کوم ... د ... څخه ... دا خبره کړی ... ښه ... چی زما ... تیرشی

او هیڅ می دوسه نه دی پوره .

ـیعنی ته‌په ژوندکی هیڅ‌مسؤلیت ته غاړه نه ایږدی ؟ ته خبر یی چی هغه ستا څخه امیند واره ده ؟

دگرهام درنگ ښه لکه گچ سپینه سوه خو سره د هغه یی وویل :

ـ ډیر خواشینی یم ، بیا هم وایم چی زما څخه وزخ او بو وړی دی.هر ډول چی دا کولای سی باید ځان ته یوه لار پیدا کړی او د کوچنی‌دشره ځان خلاص کړی .

ده بی باکه حالت زه په‌چرت کی ډوبه کړم. مارك ورته وویل :

ـزما خبره ومنه راسه زما سره‌کار وکړه. بیا نو کولای سی ریتا طلاقه **کړی اود دایان سره نوی واده وکړی** ته ترابده نه سی کولای چی د جیك او راجر څخه وتښتی .

ـعجبه مهربانه ورور یی ! زه‌ستا څخه یوڅو پیسی په‌پور غواړم‌نه پند او نصحیت .

مارك ماته‌وکتل، ماسر وښوراوه. ده یو پاکټ دجیبه راوایستی اوگرهام ته یی ور کی .

ـتشکر . اوس ما ښار ته ورسوه چی خپل موټر راوباسم.

هغه گرهام چی مایی‌پر ستش‌کاوه ماته هیڅ اهمیت رانه کړ. موټرمودده دموټر سره‌ودراوه. دری‌سره راکښته سوو. دمخه تردی چی گرهام دخپل موټر دروازه خلاصه کړی دسړك د پوری خوا څخه چیغی سوی. چی مخ موور وگرزاوه که گورو جیك اوراجر له خپل تور موټر څخه‌راکښته سول.

گرهام چی‌دوی ولیدل دمارك موټر ته ورو غور ځیدی‌سمد ستی یی‌موټر چالان کی او په ډیر سرعت زموږ له نظره ورك سو. جیك او راجر هـــم بیر ته خپل موټر ته ورالا کړه اوموټر یی پسی رهی کی. زه او مارك پـر هغه ځای هیښ پیښ ودریدو. گرهام له ډیره تلواره خپلی کلی د موټر په دروازه کی پری ایښی وی .

دواړه د گرهام په موټر کی سپاره سوو او هغه لار چی گرهام په خوله ورکړی وه پسی وامو خیستل. دوه ... لانه ؤ تللی چی تا ځایه مارك‌او ... بریك وواهه. ډیر مو ... هم ولاړ وه دسړك د غاړی دیوال‌بری

سویؤ او ټولو خلکو د دری منځ ته کتل. چی ور نژدی سوو یوه سړی وویل :

ـپه اویا میله سر عت کی پر دغه پیچو می راو گرزیدی او ولاړی ددری په منځ کی ومښتی .

دلوړی څخه بیله څو ماتو درختو نور څه نه معلو میده .

مارك پو ښتنه وکړه :

موټر یی څه ډول ؤ؟ تیزابی‌نه‌ؤ؟

ـ ولی ؟ لکه چی ته یی چلونکی پیژنی ؟

مارك په خوا شینی سروښوراوه.

دا پلا بیا که د مارك مړوندونه‌زما مرستی ته نه وای را رسیدلی خو له به می د خاورو ډکه سوی وای .

مارك زه‌په یوه‌گوښه کی کښینولم اوخپله دری ته ور کښته سو.ترڅو، دقیقو ورو سته یی خبر راوړی چی‌د موټر چلو ونکی په خپله گرهام‌دی‌چی ژوند یی د لاسه ورکړی دی . په دغه لحظه کی خپل حال نه سم بیانولای.

او راته ویی ویل :

ـ دایان کله چی دلته دپو لیسو سره زموږ مسئله فیصله سی نـــو بیر منگام ته به ولاړ سو. زه په کور کی یوه پالتوخونه‌لرم.

هیله لرم هغه ناوړی چی زماوزوز ستاسره کړی دی زه یی جبران ...م.

ـاوه ، مارك دا خبری مه کوه.

ته ماته هیڅ مسئو لیت نه لری، ته کاملا بی گناه یی .

په ډیره مهربانی یی راته وکتل‌او ویی ویل :

ستا خبره صحیح ده مگر زه دغه کار د خپل مسئو لیت یو جزبولم .

لنډه دا چی کرار کرار می‌دگرهام غم دزړه څخه لیری سو او ورځ په ورځ دمارك مینی د هغه ځای ونیوی څو چی دا مینه او محبت زمااو دمارك دواده سبب سوه. او هغه مینه او محبت، گرمی او صمیمیت چی می دمارك په غیږ کی ولیدی هیڅکله‌می‌د گرهام په غیږ کی‌نه ؤ لیدلی .

# په لرغونی مصر کی چی...

فرمان ورکی پدی ترځ کی‌یی‌د خپلو ساتونکو مشر راوغوښـــت اولارـ ښوونه یی ورته وکړه چی نجلی‌باید دکاهنانو لاس ته ورنشی او کوښښ وکه چی ستاسی لاس ته درشی.

لدی وروسته په‌ښار کی آوازهـ شوه چه‌دنیل ناوی تښتیدلی‌ده‌مذهبی اومتعصب خلك وځروښیدل ځیـــی‌د نوی فکر ښتنان خوښ شول .

په‌خوراپراخه پیما نه یی تلاښ‌پیل‌شو ـنجلی‌دیوداسی چاکره پناه ور وړی وه‌چی هغه ددی دتینښتی سره‌مخالف ؤ،کله چه پوهیدلی ؤچی دا هغه‌دنیل نښتیدلی ناوی ده اودهیواد ټول‌خلك پسی گرځی نوراووت او ددی تلاښی والاؤ ته یی اطلاع ورکړه هغوبیـــا وخپل مشر ته حال ورکی دستی‌یوه گاډی راغله چی لدی ځایه یی بوزی. داوخت د فرعون دساتونکو مشر ته‌هم اطلاع ورکول شوه هغه همد گاډی سره ددی داستوگی کورته ځـــــان راورساوه ، دلته دا اختلاف پیښ‌شو هغه څوك چه لومړی پلا اطلاع ورته رسیدلی وه هغه غوښته چی مشـــر کاهن‌ایسس ته‌یی ورولی خود فرعون دساتونکو مشر ورته وویل چی‌زه‌د فرعون فرمان لرم باید هغه‌ته‌یـــــی ورولم ،کله چه دکاهنانو طرفـــــدار ټینگار وکی نود فرعون د ساتونکـــو مشر توره وکښله اودا سړی‌یــــی ځای‌پرځای وواژهـ هغه لښکر یانو ته‌یی چی ددی کار دپاره دلته راغلی ؤامروکی چی نجلی د فرعون دشاهی ماڼی پرخوا در رهی کی. هغوهـــم گاډی د فرعون د کور پرخوا ور رهی کړه.

ځوان فرعون چی ددی په انتظـــار کی سترگی پرلار ه‌وی کله چه نجلی دده‌په کور کی پل کیښود اودفرعون سترگی پر ؤلگیدی نویی نجلی‌تــــه وویل چی مادادی ټاته نجات درکی‌او ته‌هم په یقین سره ډیره شجاع‌نجلی یی‌زه اراده لرم چی تا دنیل د ملکی‌په توگه وټاکم ،ددی‌فیصلی وروستــه پداسبا جشن جوړ شو او فرعـــون ددی ښکلی نجلی سره واده وکـــی‌د همدی پاچا وخت ؤ چی دا ناوړه دود له‌مینځه ولاړ .

هغه‌لوحه چی داتکل پر تیکی دی حوکاله دمخه د مصر په کیندنو کی لاس ته راغله اود همدی جمهـــوری ... دمخه ... د ... موزیم راتیول .

دامریکا په متحده ایالاتو کی دلمر دانرژی څخه د واټر پمپونو دپه کار اچولو دپاره گټه اخستل کیږی. د نوموړی هیواد د لمر دانرژی څخه د گټی اخستلو مؤسسه په خپلو نشر شوی راپورونو کی دا ښرگنده کړی ده چه دوه سوه هارس پاور په قوت واټر پمپونه چی په هره دقیقه کښی څلور زره پنځه سوه شپیته لیتره اوبه دیو سلو پنځوس متره ژورکوهی څخه راباسی او شپیته هکتاره ځمکه خړوبوی دلمر د انرژی پواسطه پکار لویدلای شی.

دغه شان واټر پمپونه د یوه سلیکانی مادی څخه جوړی شوی د بطریو په واسطه کار کوی، نوموړی بطری د لمر وړانگی په مستقیمه توگه په برښنا اړوی او بیا دهغه د قوت څخه دواټر پمپ د گرځیدو استفاده کیږی همدا راز یو خاص ډول جوړی شوی هنداری چی د لمر وړانگی جذبوی او تودوخی مینځ ته راوړی بیا په مخصوص نلونو کی اوبه په بخار تبدیلوی ، تولید شوی بخار دومره قدرت پیدا کوی چی یو دبرښنا مولد توربین وڅرخوی اود هغه څخه په معینه اندازه برښنا لاس ته راولی اوس په هغه هیواد کی دلمردانرژی څخه دگټو اخستلو په منظور د لس میگا واټو په اندازه د برښنا د مولد جنریتر کار پیل شوی دی .

دآلمان په فدرالی جمهوریت کی هم دلمرد انرژی څخه د کورونو دتودولو اودبرښنا د تولید پاره کار اخستل کیږی.

په دنمارک کی هم د کورونو د تودولو په مقصد د هغه هیوادتخنیکی مؤسسو نوی پروژی تر لاس لاندی نیولی دی دهغه هیواد په نشراتی منابعو کی لیکل شوی دی چی دلمر انرژی اود هغه څخه گټه اخستل مخصوصا د هغه هیوادونو دپاره چی ډیر لمر لری او نوری د انرژی منابع نه لری ډیر مفید ثابتیږی .

همدارنگ په اتحادی آلمان او دنمارک او څینی نورو هیوادونو کی د برښنا دتولید په منظور دباد د انرژی څخه استفاده شوی ده د باد انرژی دبادی ژرندو په واسطه دگټی اخستلو ډ گرځی پدی توگه چی دبادقوت دژرندی پروانه گرځوی اوبیا دغه پروانه هغه توربین په گرځیدو راولی کوم چی د برښنا دتولید دپاره جوړ شوی دی. دنمارکی منابع وایی د برښنادتولید

# لمر یاد انرژی...

توربین چی دباد په انرژی گرځی په هغه هیواد کی د نولس سوه شپږ- اویاوم کال راهیسی پیل شویدی او هیله ده چی په راتلونکی وخت کی لا پراختیا ومومی اوس هلته دپنځو څخه ترلس په سلوکی دهمدغه شان برښنا څخه دگټی اخیستلو دپاره هلی ځلی روانی دی .

په اتحادی آلمان کی دبادد ژرندی څخه استفاده ډیر پخوا پیل شوی وه خو بیا څو موده وځنډیده او اوس بیا په هغه هیواد کی دباد دانرژی څخه د راز راز کارو استفادی پیل شویدی داروپا په اکثرو هیوادونو کی دلمر او باد دانرژی څخه گټه اخیستل دننی ورځی تخنیکی سلسله گڼل کیږی او پوهان هڅه کوی چی ددغه انرژی څخه مخصوصا دلمر د انرژی څخه داوبود تودولو ،دکورونو د سړولو، برښنا تولید داوبو دنقلولو دنباتاتو دپاره دتازه اوبو برابرولو، د تیلفون او تلویزیون فوتو سنتیز پر عملیه، دبطری په واسطه دلمر د انرژی څخه برښنا لاس ته راوستل ټول هغه ورځنی مسایل دی چه په پرمختللی هیوادونو کی پرهغه باندی څیړنی روانی دی .

# په افغانستان کی...

اوبدلو فابریکی برخه اخیستلای شی. دغی فابریکی غیر ماهر یا نیمه ماهر کار گران په خپله دکند هار د ښار او خوا ولایاتو څخه استخدام کیدای شی.

**۳- دخرڅلاو بازارونه**

داقتصادی علو مو پو هان دتولید وروستی هدف خرڅلاو بولی څکه په شی تولید پری څو دلگښت له پاره وپلورل شی. که چیری دیوی فابریکی تولید شوی محصو لات د خرڅلاو بازار ونه لری فابر یکه هرو مرو دماتی سره مخامخ کیږی اوښایی چی دی ټکی ته دپلان جوړولو دمهغه لومړی سره پوره پاملرنه وشی.

دنساجیو تولیداتو ته اوس هم زموږ په هیوادکی پوره غو ښتنه شته څکه پوښاک دانسان دلو مړ نیو اړتیاو څخه شمیرل کیږی. په ۱۳۵٤ کال کی د افغانستان دسپینسینو ټکرانو مجموعی لگښت یو سلواوه ملیونه متره اټکل شوی وچی په پنځه شپیته ملیونه متره یی په هیواد کی دننه تو لید شوی ؤ دلگښت دا- اندازه به د اوه کلن پر مختیا یی پلا په وروستی کال کی دسنهی ټکرانو په گډون دوه سوه ملیونه ته لوړه شی نوځکه لیدل کیږی چی دکند هارد سپینسینو ټکرانو دفابر یکی تولیدات دښه بازار سره مخامخ دی او پوره غوښتنه ورته موجوده ده. په همدی ترتیب دکندهار دوړینو ټکرا نو دفابریکی تولیداتو ته هم تقا ضا شته اوښه بازارونه ورته ستر گی په لاره دی.

سر بیره پر پاسنیو عوا ملو دکجکی دبریښنا انرژی هم دیادولو وړده چی دکند هار دنساجیو دی دوونو فابریکو دفعا لولو او په کار اچولو په برخه کی تری ښه استفاده کیدای شی. مخصو صا چی دکندهار ولایت دلومړی درجه لویو لارو په وسیله دهیواد دنورو ولایاتو سره تړلی دی څکه نو ددغه فابر یکو دتولیداتو دترا نسپورت په برخه کی هم کوم پرابلم نشته اودا امکان ښه ترامساعد دی چی ددغو فابر یکو تولید شوی ټکران په منا سب وخت کی دهیواد ټولو کورنیو بازارو نو ته ورسول شی. دغه موا صلا تی کرښی کهله یوی خوا دخرڅلاو بازارونو ته د فابریکی دتولیداتو په رسولو کی اهمیت لری همدا شا نفابر یکو ته داومو موادو په رسولو کی هم خورا ارزښت لری.

داوه هغه عوا مل چی موږ ته سرله اوسه دکند هار دسپینسینو اووړینو ټکرانو دفا بریکو دبر یا لیتو ب زیری راکوی. لنډه دا چی ددغو فا بر یکو دفعا لیدو په اثر به دکند- هار ولایت په اجتما عی او اقتصادی بنیه کی محسو س تغییر منځ ته راشی څکه له یوی خوا به ولایت کی دصنعتی سکتور دودی سبب شی او له بلی خوا به دسیمی داومو موادو دصاد- ریدو په بر تله په هیواد کی د ننه دمغی پخول استعما لول یاصادرول ډیر عاید لری سر بیره پردی دنژدی شپږ نیم زره تنو څوا نانو له پاره دکار زمینه برابره شی چی دا پخپله کهله یوی خواد افرادو دعا ید تود سطحی پهزیا توا لی کی ښه برخه لری له بلی خوا داجتما عی مفا سدو اونا خوا لو په لهمنځه وړلو کی چی اکثرا دبیکا ری څخه زیږی فعا له برخه اخیستلای شی.

په ملی سطحه کی هم ددغو فا- بریکو فعا لیدل مثبته اغیزه لری له یوی خوا دواړداتو دتعو یض په صورت کی له هیواد څخه داسعارود وتلو مخه نیو له کیږی او له بلی خوا به دژوند دلومړ نیو ضرور یاتو څخه دهیواد او هیواد وا لو دخود کفا یی دلوړ هدف په لور او چت گامو نه پورته کړه شی.

# یوه ټوکه ټکه دا

تهیه کو ونکی م،و

## د ښځو د سن موضوع

وایي چې ښځې تل خپل سن لږ معرفي کوي نو یوه ښځه چې وډاکتر ته د علاج دپاره ور غلې وه ډاکتـر ځنې د پوښتل چې د څو کا لو یې؟

ښځې وویل: دینځه ویشتو کالو یم

ډاکتر: یوه نا رو غي خودی داده چې هیر جنه یې نوره نا رو غي به دی هم در معلومه کړم



زوی پلار ته: بابا مور په تشناب کې د ه تاته مې ددی مصنوعي سر راوړی کهسات په تیروی.

## د ډېرون غوښې

یو را نیو نکی قصاب ته ور غی او د غو ښو را نیو لو غو ښتنه یې ځنې وکړه.

قصاب ور ته وویل: چې تن غوښې تو ډېرون ګرا نی دی.

را نیو نکی: نو لطفا ماته د ډېرون ستا مېل وی نو به یې در ته تهیه دغو ښو ځخه دوه پاوه را که.

## په هوټل کې

یو مسافر چې هوټل ته ور غــی د هوټل وخد متګار ته یې وویل چې دانه کیکي ؤ خسکان شته؟

خدمتګار ،دا ګړی یې نه لرو خو که کړو

## سطلب سی مزدوری ده

یوه مزدور ویوه کور ته زنګ وواهه د کور میرمن وره ته را غله ویل څه دی ویل:

مزدور :غوا ړم چې ستا سی دکور دمخ ځخه واوره پا که کړم.

ښځې وویل: داواوره ډېره ښایسته ده مو ږ یې د کور دمخ ځخه نه ایسته کوو ولاړه سه بله مزدوری پیدا که

مزدور :ته مزدور ی را که زه به د بل ځایه دا ښا یستـــه واوره راو ړم ستا سی دکور مخ ته به یې اچوم.

## د سلماني په دکان کې

یوه سلما نی چې په یخه چاړه د خپل مشتری ږیره ور خریل او ډیر یې زخمی کی.

مشتری ورته وویل چې یوه تیره چاړه نشته؟

سلما نی: لرم یې څه بې کوی.

مشتری: یو واز یې را که چې زه دفاع په وکمه



هلك_ دادی دمور اجل می ترلمنی لاندی ور ایله کی خدای دی فضــــل کوی!

## په معاینه خانه کې

ناروغ وډاکتر ته: ډاکترصاحب داینځو س ور ځی مې د ډوډی ځکه نه ده کړی.

ډاکتر: عجبه ده چې ځنګه تر اوسه ژوندی پا تی سوی یې؟

ناروغ: لیکن دشپې بیا ځان تــر یږی به ډوډی مړوم



**یولاروی وناوی او زوم ته۔ پدی‌موټرکی یوازی تاسی دوه ځائیږی آیا دبل چا دپاره ځای نشته .**

## دواده دخندا علت نه

یوی نجلی خپلی ملگری ته چی‌هغه هم‌ځوانه نجلی‌وه‌وویل‌آیاد هغه‌ځوان سره چی تاپو وخت یاداوه واده نــه‌کوی؟

دوهمه نجلی :یه

لومړی نجلی: ولی؟

دوهمی نجلی وویل:"زما پلار دافکر کوی چی ماد ثروت په نسبت‌غواړی موږمی دا فکر کوی چی‌د هغه کوزنی‌ښه خلك نه دی.

ورور می دهغه څه بیر یږی ځکه‌چی هغه بو کسر دی

اوزما هم یو عذر سته.

لومړی نجلی: هغه دادی چی دی‌ځوان دواده کولو غو ښتنه هم نه‌ده واخخه کړی.

## ستا ستا ینه کوو

محمد بن قاسم‌اوابو مکرم بغدادی چی‌یو ظریف سړی وو د خپل مملکت دخلیفه په مجلس کی ځنگ پرځنگ ناست‌وه اویوه دبل په غوږ کې‌خبری کولی.

خلیفه ور ته وویل: چی بیا څــه دروغ وایا ست.

په هغو کی یوه‌ور ته وویل چی‌بلی هو ستا ستا ینه کوو.

## د سبق دزده کړی لار

پلار ځوی ته: چی سبق وا یی‌نو ښوری ولی،

زوی: غواړم چی سبق می په‌ذهن کی ښه کښینی.

پلار: دانو په ښه ریډ لو څه اړه زوی؟ ولی بابا په بوری یا پــه جوال کی چی یو شی اچوی نو بیی سره وښور وی چی ښه پکی‌ځـای شی.

## ماغزه

یو سړی دیو ډی خو ړلو دپاره‌دکله پز دکان ته ور غی دکله پــز شاگرد ور ته‌وویل چی دښور واسره‌ځنگه غو ښتی در ته راوړم.

سړی ور ته وویل څه شی شته‌شاگرد وویل ژبه ،ښی غوږونه نور او نور.

میلمه وویل داخو زه خپل دانرم‌داسی شی راوړه چی زه یی نه‌لرم

نو شا گرد چی ولاړی د هغی‌خوا**یی‌دښوروا سره ماغزه راوړه او میلمه** ته‌یی کښیښنول

## زړه‌سورکه

دیو چا وزړی سور کی ته اړتیاوه آخریی دیو داسی سړی پته وموندل چی‌زړه‌سور که یی در لوده نو ورغی اوسور که یی ځنی و غو ښته .

سورکه والا ورته وویل، ته فکروکه که‌دا سور که ماچا ته ور کولای‌نو ولی به زړیده

## تعجب

یوه سپین ږیری سړی ویوه هلك ته وویل چی عجبه ده پلار دی خیاط دی او تا څیری کا لی اغو ستی‌دی هغه ور ته وویل: دانو څه عجبه ده ستا خو بیا هم زوی غاښ جوړونکی دی اوستا په خو له کی یو غـا ښ نشته.

## نڅا

په انگلستان کی یو لوی مجلس‌جوړ سوی ؤکومی ننداری چی هلته وی ټوله دبیوزلو خلکو په گټــــــه‌تمامیدی .

پدی ټل‌کی نڅاوی هم وی چـی‌**سمد لاسه** نارینه ؤښځی راولاړیدل اوسره نڅیدل ،پدی مجلس کـــــی‌دانگلستان هغه ځیرك‌او ټوکی لیکوال برنارډشاو هم دعوت‌سوی ؤ۔نوموړی‌راولاړ سو اود یوی ډیری بدر نگـی ښځی سره ونڅیدی خلکو ډیرتعجب‌وکی‌نو مجلس په ختم کی چاپوښتنه ځنی وکړه‌چی پدادونه ښکلو ښځوکی‌تا یوه ډیره بدرنگه دنڅا دپـــاره ولی وټاکل، ده وویل دایو دفقـــــرمجلس ؤنو ماهم تر خپله وسه‌برخه پکښی‌و **اخیستل .**



**ته ستورو ته گوری که پریـــوښځو ته؟ ښځه سترگی دی خاوری شه ځکه نجوم دی ؟**

دغ، ا. ژباړه

# ځنګه کولای‌شو چی د کوچنیانو غاښونه روغ وساتل شی

ښه او روغ غاښونه دانسان په روغتیا او ښکلا کی ډیر په زړه‌پوری نقش لوبوی اود بدن د ډیرو مهمو غړوله ډلی څخه ګڼل کیږی‌اوهمدغه غاښونه دی چی دانسان ظاهری ښه نورماله ښیی .

په ناروغو او خرابو غاښونو نه‌شو کولای چه دغذا او ژوند خوند په درست ډول سره درك کړو ځکه د غاښونو درد دانسان ژوند تریخوی اود غذا خوند په‌بل ډول ګوی .برسیره پردی همدا ناروغ غاښونه‌دی کوم چی دنورو مرضونو دمینځ ته راتلو اود هغوی د مزمن کیدو دپاره دانسان په وجود کی زمینه برابروی مریض او ناسالم غاښونه دانسان‌په بدن کی د غذا داختلال سبب هم کرځی ځکه چه په ناروغو غاښونو سره‌غذا په ښه ډول نه ژوول کیږی.

غاښونه د هاضمی د غړو له‌جملی څخه هم شمیرل کیږی اود هغوی‌د ناروغوالی په صورت کی خواړه په لومړنی دستګاه کی په درست‌او صحیح ډول سره نه میده کیږی‌چی په‌نتیجه کی هضمی تکلیف، دمعدی دردونه او نوری ناروغی مینځ ته راوړی.

ناسالم او مریض غاښونه انساند انامیا په ناروغی باندی اخته کوی ځکه چی ورځنی غذا په لومړی‌هضمی دستګاه کی د سختوالی په صورت کی ښه نه میده کیږی ځکه نوپه‌کار دی چی د غاښونو په ساتنه کښی ډیر زیار او زحمت وایستل شی.

که چیری دی ته ښه ځیر شواو فکر وکړو سالم او روغ غاښونه برسیره پردی چی د انسان په‌تیپ اوظاهری شکل کی مهم نقش لری‌او دهغوی موجودیت انسان ځوان او تازه ښکاره کوی او نشتوالی یی‌پرمخ باندی ګونځی پیدا کوی زمونږ د وجود په روغتیا او سلامتیا کی هم فوق العاده ارزښت لرونکی نقش لوبوی .

لاتر اوسه هم زمونږ په ټولنه‌کی داسی کورنی شته‌او همدا ډول داسی میندی او پلرونه پیدا کیږی چی‌د خپلو اولادونو د غاښونو د ساتنی‌په برخه کی بشپړ معلوماتونه نه لری اودغی مهمی موضوع ته پاملرنه نکوی . پدی اواخرو کی د غاښونو مرضونه په کوچنیانو کی خپل صعودی قوس وهی او ورځ په‌ورځ د غاښونو زیاتره ناروغان روغتونو او د غاښونو کلینیکونو ته مخه کوی. خوپته باید پاتی نشی چی دکوچنیانو دغاښونو ناروغی د دوی دموراوپلار دفکر دطرز سره‌مستقیم‌اړیکی لری.

ډیرله نویو ځوانانو څخه لیدل کیږی چی لاد دیار لسو او شپاړسو کلنو ترمینځ عمر لری خو دوی‌دخپلو طبیعی غاښونو شفافیت او واقعی کیفیت دلاسه ورکړی وی ځکه ددوی موراو پلار هغوی ته د غاښونودپاك ساتلو، کریم او برس وهلو اودسپینو اوسالمو غاښونو په باره کی څه ندی ویلی.

همدا رنګه یو شمیر میندی‌او پلرونه هم شته چی خپل کوچنیان دسختو ،خوږو او سړو شیانو دخوړلو او ژوولو څخه نه منع کوی‌اود دهغوی د غاښونو د ساتنی څارنه‌نه کوی او هغه وخت ډاکتر ته مراجعه کوی کوم چی د دوی کوچنیان دغاښونو په درد باندی اخته شی.نن ورځ دغاښونو زیاتره ډاکتران کلك خواړه او شیرینی باب د غاښونو دناروغی د ډیرو اغیزمنو عواملوڅخه ګڼی .

## په کوچنیوالی کی ـ

ډاکتران او د غاښونو متخصصین میندو او پلرونو ته داور په ګوته‌کوی چی کوچنی ماشومان باید غلیظ شرـبتونه ونه څښی او شیرینی باب‌دی هم‌زیات نه خوری . که چیری موراو پلار پری نه ږدی چی د دوی اولادونه دی‌دزیاتو شیرینیو په خوړلو باندی عادت پیداکړی پدی صورت کی‌به‌یی دخپلو کوچنیانو دغاښونو د ساتنی‌او سلامتیا په لاره کی ډیر په زړه‌پوری خدمت ترسره کړی وی .

خود ضرورت په وختونو کی‌شرـبتونه او شیربنی باید مخکی له‌غذا څخه کوچنیانو ته ورکړ شی .

هغه کوچنیان چی د ویټامینود کموالی له پلوه په ناروغیو بندی اخته کیږی د ډاکتر له خوا هغوی‌ته باید هغه ډول شر بتونه ویکړه شی چی‌دویټا مینونو د کموالی درفع کولو دپاره مفید او اغیزمن واقع‌شی خوزیات خوږ والی ونه‌لری . بد به‌نه وی چه پدی برخه کی ستاسی‌دپاره دیوه شربت مثال درکړو کوم چی‌د نارلا په‌نوم سره یادیږی دغه‌شربت پداسی حال کی چی ډیر زیات ویټامینونه او شیرینی لری خودومره زیات نقصان او ضرر د کوچنیانو دغاښونو دپاره نه رسوی ځکه چی دنوموړی شربت‌شیرینی او خوږوالی دګلوکوز د مایعو په اساس تهیه‌او برابرشوی دی نه دسکروز په مقایسی سره .

## دشیدو د رودلو په‌وخت کی ـ

شیدی رودونکی او خوړونکی کوچنیان هیڅکله باید د شیرینیو خوړلو ته تشویق نه‌کړل شی‌برسیره پردی دی زیار وایستل شی چی‌د هغوی په غذاؤ او شیدو باندی‌دیو څه اندازه بوره وپاشل شی ترڅو چی د دوی په ستونی کی ونه‌نښتل شی. دغه یو پرابلم دی چی‌اکثره میندی او پلرو نه دی ټکی ته توجه نه کوی اود همد غه کم‌فکری یاږړه سوی له امله څرنګه چی‌هغوی خپلو کوچنیانو ته دشیرینو په‌ورکولو کی زیاتوالی کوی ځکه‌نو خپل کوچنیان په راتلونکی وخت‌کی دغاښونو په ډول ډول ناروغیوباندی اخته کوی . همدا رنګه باید کوچنیان ته‌دا ور وښودل شی چی سختی غذاوی ،او کلك شیان‌دی په خپلو غاښونو باندی نه ماتوی .برسیره‌پر دی میندی او پلرونه دی ټکی ته‌هم باید ځیر شی چی د دوی کوچنیان دی د ژاولو په ژولو باندی ځانونه‌نه روږدی کوی ځکه په تجربو سره ثابته شوی ده د هغه چا غاښونه کوم چی د ژاولو په ژولو باندی‌عادت لری دهغو کسانو د غاښونو په‌نسبت چی هیڅکله یی ژاولی ندی ژوولی ډیر ژر خراب او له مینځه تللی‌دی.

ددغه اصل له مخی چی غاښونه‌د انسان په ښکلا کی ډیره په زړه‌پوری برخه لری او دبدن د ډیرو مهمو غړو څخه شمیرل کیږی ځکه نو کوچنیان د کوچنیوالی په دوران‌کی باید پری نه ښودل شی چی یخ، شیرینی او کلك خواړه وخوری حد دغو توکو رواداریو آخرینه نتیجه‌د کوچنیانو دپاره پرته له رنځاو درد څخه بل شی ندی .

نرم چاکلیټونه چی لږه شیرینی ولری او بسکیټونه کوچنیانو دپاره کوم ضررونه نه‌لری اود غاښونو ډاکتران د هغوی د خوړلو مشوره‌د کوچنیانو او ځوانانو دپاره ورکوی. دیو مقدار فلوراید خوړل د کوچنیانو اوځوانانو د غاښونو دپاره مفیداو ګټور ثابتیږی له نیکه مرغه دغه‌عنصر هغوی داوبو له چینلو څخه اخلی. همدا رنګه‌د غاښونو د کریمونوزیاته برخه دد غه کیمیاوی عنصر څخه جوړه شوی‌ده چی‌پدی ډول‌دکریمونو په‌استعمال سره د خپلو غاښونو د ساتنی او سلامتیا په لاری کی لوی خدمت کولای شی. د غاښونودساتنی دپاره ترټولو په ورځ کی بایددوه واره خپل غاښونه برس کړل شی دی دپاره چی د غاښونو د ناروغیو څخه مخنیوی وشی باید ټول په‌تیره بیا کوچنیان او ځوانان دی همیشه دډاکترانو له توصیو او نصیحتونو څخه برخوردار شی .

دکوچنیانو د ژوند د لومړی پیل څخه د هغوی غاښونو ته په‌تیره‌بیا ددوی د شیدو غاښونو ته باید ډیر زیات اهمیت او ارزښت ورکړل شی ځکه د شیدو تر غاښونو وروستنی غاښونه هغه‌وخت روغ‌رمټ مینځ‌ته راځی کوم چی ابتدایی غاښونه‌له سلامتیا څخه برخوردار وی . هیڅکله دی‌ته انتظار ونه باسی چی کله‌زمونږ کوچنی دغاښونو په خوږو اخته‌کیږی ترڅو چی هغه د غاښونو ډاکتر ته ورووړو بلکه په کار دادی چی‌دهمیشه دپاره باید د غاښونو د ډاکتر له توصیی څخه ګټه واخلو په‌تیره‌بیاپه هغه‌وخت کی کوم چی کوچنی خپل شپږ اولی غاښونه راباسی .

# د کندهار د ادب خیزه...

اود کند هار مجلی پر نه دانیس او اصلاح په ور ځیا بو کی هم نشر او خپاره شوی دی.

دشعر او شا عری له جها نه هم لری نه دی یا ته شوی نو ځکه پی کله نا کله به پښتو او دری ځینی شعرو نه هم ویلی دی.

دی چی یو بادیا نته ،سپیڅلی او پاك پښتون دی هغه ځوك چی هیواد ،ولس او خاوری ته په صدا قت او ریښتینو لی کار وکړی زیات یی خوښی او ډیر پر گران وی ددوه مخی سړی ځخه یی ډیره کر که کیږی او بدیی ځنی را ځی.د خرا فاتو مخا لف او د اخلا قیا تو طر فدار دی.

دا چی ښاغلی سرپاس پخپله یو ادبی شخص دشعری قریني دښه قلم او دښو افکارو خاو ند دی اوددوی لوی نیکه مرحوم ملا محمد اکرم اخو ندداحمد شا هی دربار یو دینی او علمی مشاور او د قلم مشر ؤنو خرگندیږی چــــی ددوی کورنی یوه علمی، منوره،او عرفانی کورنی ده.

ددغه ښا غلی لیکنو او مقالو په راغونډ کړه سوی مجمو عه کی می ددوی دپښتو او دری ځینی اشعار هم ولید ل چی دادی دپښتو اودری شعرو نو یوه نمو نه یی په لا ندی ډول را نقلوو:

**دپښتو دشعر نمونه یی**

شا مخ مو قف دی په مخلوق کی اوږمقام دانسا ن
بیا مشرف کړی دی خدای ج په شرف د ایمان
دبی رنگی په رنگ رنگین سه تصنــع مه کوه
کبر غرور ځه لیری گر زه په قوه د و جــدان
دبخو خلکو نصیحت په غوږ واوره وروره
گو هر جوړیږی به دریاب کی دیو ځاځکی باران
ددږو قوو مجادله ده ستاوجود کی مدام
شریف انسان کله او سیږی بیا یمو په شـــا ن

**ددری دشعر نمونه یی**

چرخ گر دو ن همه در سینه مـــامیچر خد
هم بساط دو جها ن در دل ما میچر خـــد
نفس از بسکه تکا فوی هو س ها دارد
نغمه ها در قفس بی سر و پا می چر خد
محتسب تند مبین سوی مـــن افتاده
آه من ازد هنم تا به سما می چر خـــد
بید ل وحا فظ و سعدی سخن ها سفتند
حل نشد ذره خو ر شید کجا می چر خد
فکر (سر پا س) قصیر است بــه مقصد نر سد
گو هر اصلی ایـــن بحر کجا می چر خد

# تکره ربا بی بلبل شاه...

هغه آله ده چی د هغی دساز طبیعی جوړ ښت ددی سیمو د غروله محلی مو سیقی سره ډیر قوی او بنیادی یووا لی لری او هر تر نگ یی دهر پښتون زړه کی داسی سور او هنگامه راژوندی کوی چی ته به وا یی جادو کوی دامو ضوع درباب په برخه کی دادعا ثابتوی چی داد موسیقی آله ډیره زړه نه یخوا په همدی خاوره کی منځ ته را غلی او د همدی خلکــو تر منځ یی وده او انکشا ف کــړی

بلبل شاه په دی باب چی آیا تــر اوسه یوری به دی په خو سندرو او نغمو کی رباب ږغو لی وی دا سی وویل:

-پیاره که ریښتیا را نه یو ښتی نو حساب یی را ځخه ور ك دی داهم ځکه چی زه هره ورځ په را ډیو کی به ددو اویا زیاتو پار چو کی رباب ږغوم نو ددی حسا ب به ځنگه وشی خو هغه نغمی چی ما رباب یکښی ږغو لی دی ۷ نغمی دی چی زیا تره وختو نه له را ډیو ځخه خپر یږی.

سر بیره بردی ما تر اوسه ســـه سلمها و کنسر تو نو کی هم بر خــه اخستی ده زیاتره له تا وده هر کلیو سره مخا مخ شوی یو.

دکندهار تکړه ربا بی بلبل شاه په پای کی وویل.

-خدای مهر با نه دی تر اوسه زما گذاره ښه ده،دکا بل ددهمز نگ په سیمه کی دتر کا نی دو کا ن لرم چی دگذا ری وړ عا ید تری تر لاسه کولای شم ،سر بیره پر دی را ډیو هم معا ش را کوی .

نو دادی چی شکر ژو ند مو ښه تیریږی او کله دتر کا نی په دو کان کی دتر کانی له ټك او ټوك سره او کله هم دربا ب او نورو مو سیقیو په زړه پوری آلو سره همغا ړی په خوښی دژو ند شپی ور ځی تیروو

چی خیری یی خلاصی شوی نو می تشکر ځینی وکړ او له تودی خدای پامانی وروسته ځنی زارهی سوم .

کندهار
اطلاعات او کلتور
مسؤل مدیر عبدالکریم طالب "رحیمی"
مرستیال احمد "راشد"
مهتمم غلام جیلانی
پته : دکندهار د اطلاعاتو او کلتور آمریت
تیلفو نو نه
د دولتي مطبعي سوچلو ر د ...... ۲۶۸۵۱
کندهار مجله ...................... ۱۷
د ورځپاڼو او مجلو د توزیع مدیریت.. ۵۹
دو لتی مطبعه

